# مورچل

## کالګڼه

## ۲۰۱۵

نهم کال، دوولسمه، پرلپسې ۸۸ مه ګڼه، صفر-ربیع الاول ۱۴۳۷هق، دسمبر۲۰۱۵م






نهم کال، دوولسمه، پرلپسې ۸۸ مه ګڼه، صفر-ربيع الاول ۱۴۳۷هق، دسمبر۲۰۱۵م

# مورچل

**علمي، سیاسي او جهادي میاشتینی خپرونه**



**نهم کال ۱۲مه، پرلپسې ۸۸یمه ګڼه، صفر-ربیع الأول ۱۴۳۷هق، دیسمبر ۲۰۱۵م**


**د امتیاز خاوند**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر**

شکــور (شفق)

**کتــنپلاوی**

حـــسن خېـل | ایـــوب صــــافی
حـــسن زوی | حکمت بغلانی
زبیر مــسافر | حافـظ سعـــید

**تخنیکي چارې**

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه



**مکاتباتي ادرس**

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com




بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# دعزم په ورانګو کې

# دمورچل دا کالګنه !!!

له ښه بخته د(۲۰۱۵ز)کال مورچل کالګنه پداسې شيبو کې چاپوو،چې داسلامي امارت دنورو څانګو په څيرسرسپارليومجاهدينواودفرهنګي مورچل قلموالو،دجهاد او فرهنګ په غبرګو ډګرونو کې دپام وړ پرمختګونه کړي اوډيرى فتوحات اوبرياليتوبونه يې ترلاسه کړي دي ، مجاهدينو ددې (۲۰۱۵ز)کال په اوږدو کې وکړای شول، ترڅو د سپتمبر په( ۲۸ )مه نيټه د کندز ولايت مرکز چې د افغانستان شپږم ستر ښار دی، فتحه او ددښمن پوځي برم او سياسي شتون تر کلکې پوښتنې لاندې راولي،همداشان دهيوادپه لراوبرکې ،دنوروسترو پوځي هډوغوندې (۳۴)مهمې ستراتيژيکې ولسوالۍ په بشپړ ډول فتحه اود زرګونوميلو سپکواو درندو وسلو سربيره ،لسګونه پوځي شوبلې اونظامي عراده جات له دښمن څخه ولجه شوي ،مجاهدينووکړای شول، چې دغزني او کندزپه شان دسترو ولايتونو پولادي زندانونه په ړنا ورځ مات او سلګونه بنديان ترې آزاد کړي!

همدا شان داسلامي امارت فرهنګي کميسون هم دخلکوداټکلونوخلاف ،ډيرميدانونه فتحه کړي او اسلام او خاورې غليمان يې دقلم دنيزو په څوکو سورې سورې کړي ،فرهنګي کميسون دثقافت او کلتور په ټولوډګرونوکې عام ددې نه چې چاپي دي ،که بريښنايي ، غږيز دي او سمعي، له نوښته ډک ګامونه اخستي او خپله فرهنګي سيالي يې له خپلوحريفانوڅخه په ډيره کاميابۍ ګټلې ده .

دهرې سترې جهادي پيښې ويډيويي انځورونه خپرول ،دنړۍ ګوټ ګوټ ته په ملي او بين المللي ژبو دپوځي خبرونو عاجل رسول ، روانوچاروباندې پر وخت وزمان تحليلونه او تبصر ې

لیکل اوخپرول ،داسلامي امارت دبیعت له جوت پیغام سره زرګونه کلیزي چاپ کول ،دناګوارو حالاتو سربیره بیا هم په مختلفوداخلي او خارجي ژبو ګڼې مجلې چاپول او ترټولوډیراغیزمن کار، چې فرهنګي برخه کې دا کال وشو، هغه داسلامي امارت دنوي زعامت په باب دبیعتونوتصویري او صوتي نشر او پرله پسې دمجاهدینواو ولسونو ژمنتیا اوهڅونه، هغه نه هیریدونکی فعالیت دی، چې له برکته یې داسلامي امارت صف لاهم دوحدت تربیرغ لاندې راټول شواونن لله الحمد دا ستونزه تر ډیره بریده پورې حل شوه.

شک نشته چې داسلام ددښمنانولخوا دامیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهدرح دوفات خبرونه نشرول ،یوه نااندریزه پیښه وه، خوترڅنګ یې له اختلاف څخه داسلامي امارت دصف ژغورنه او په یوه صف کې بیا دمجاهدینو او ولسونوراټولیدنه، هم هغه دروند کار و،چې ښتن تعالی ترسره کړاو دفرهنګي کمیسون ونډه پکې له چانه پټه نده !

خلکو ولیدل !چې فرهنګي کمیسون دفکري مکتب او ذهني مدرسې په رغښت او تنویر کې څومره مثبت ګامونه واخستل او ددې کمیسون دقلموالو اوفرهنګیانوله اغیزمنوتجزیو او پر حقیقت دولاړو شننواو څېړونوپایله کې دیرغلګرو درواغجن تبلیغات او غولونکې ادعاوې څومره دړې وړې او دسقوط او رکود سره مخامخ شوي .

دمورچل دا کالګڼه ! دعزم دعملیاتوپه وړانګوکې داځلیږي، لکه دسباوون په افق کې دلمربختوره طلوع ،چې دنړۍ په افاقو دخپل مشال څادر وغوړوي او ددنیا تیاره ګوټونه رڼا کوي ،دمورچل کالګڼه که دیوې خوا د(عزم )دفتحو دقافلو په سر کې دجرس غوندې شړنګیږي ،نو دبلې خوادجهادي فرهنګپالنې هغه هوډ پالي، چې له امله یې دواشنګټن ،او برکسل بتکدي په واویلا اودفرهنګي بځرکیو له حراراته په کوکارو دي !

دهیواد دنظامي پرمختګونو عمق ته په کتو او دجهادي رزم او دتکبیرونو شور مو ،تر پخوا ددې هیله او تلوسه پیاوړې کوي، چې راتلونکی (۲۰۱٦ز)کال به دفتحو نغارې وډنګیږي اودمورچل بله کالګڼه به انشاءالله تعالی هیوادکې په شور او ځور چاپ کړو،هلته به نور دظلم او یرغل تغر ټول شي او دمستکبرو امپراطوریو دطاغوت څلې به پر ځمکه رانسکور شي ،پدې دعاوو به پایو او همدا تلوسه به له ځانه تر پایه ژوندۍ ساتو!!

(وماذلک علی الله بعزیز)

# د جهادي صف

## د يووالي اهميت او ضرورت

شاهد (غزنیوال)

جهاد په مأموربه احكامو كې تر ټولو أهم عبادت او ستره فريضه ده.

جهاد د اسلامي احكامو د تنفيذ او دفاع مهمه وسيله او د اسلامي شريعت ستر ركن دی .

د جهادي صف يووالی يو ټولنيز ضرورت او داسلام په مقدس دين كې خاص اهميت لري.

د همدې اهميت له مخې الله تعالی د قرآن كريم په متعددو ايتونو كې د اسلامي صف پر يووالي ټينګار كړي تر دې چې په ٢٨ سيپاره كې يې يومكمل سورت د الصف په نوم نازل كړي او په هغه كې يې په خاص ډول د جهادي صف پر يووالي تركيز كړی.

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوصٌ (٤)

په جهاد كې د صف يووالی او د امير اطاعت له هغو أساسياتو څخه دي چې اسلامي فقهاوو يې په هجومي ډول (جهاد ) كې د اميرموجوديت او د هغه اطاعت د جهاد لپاره حتمي شرط بللی .

د دغه شرعي ضرورت ( دصف يووالي) اهميت مونږ د اسلامي نړۍ په ننيو حالاتوكې ښه محسوسولای شو.

نن داسلامي نړۍ ډير هيوادونه عملا داشغالګرو كافرانو تر يرغل لاندې او د هماغه ځای مسلمانانو يې د يوې شرعي فريضې په حيث په مقابل كې په جهاد لاس پوري كړي .

په كومو هيوادونو كې چې داشغالګرو په مقابل كې دفاعي مقاومت تريوه متحد قيادت او يوې قوماندې لاندې تر سره كيږي هلته يې عملا ښې پايلې لرلې او دښمن يې په هجومي عزائمو كې شاګرز ته اړيستلی.

د دغو اشغال شويو هيوادونو له جملې څخه يوهم افغانستان دي چې له تيرو ١٥ كلونو راهيسې د تيري كوونكو امريكايانو تر اشغال لاندې دی.

سره له دې چې امريكايانو د غربي نړۍ د ٤٨ هيوادونو په ملتيا افغانستان اشغال كړی او د دغه اشغال د مشروعيت او برياليتوب لپاره خپل ټول پوځي او تخنيكي قوت په كار اچولی ، خو دلته د مقاومت د قيادت د يووالي له بركته له خپلو ټولو پوځي او تبليغاتي هلو ځلو سره سره ناكام دي.

د اشغالګرو د اشغال پر ناكامي او فضيحت سر بيره كومې سيمې چې د مجاهدينو تر كنترول لاندې دي هلته امنيت تأمين او د ګډوډي او بي نظمي مخنيوی شوی.

خو برعکس په کومو هیوادونو لکه په عـراق ، صومالیا او ځینو نورو هیوادونو کې چې د اشغالگرو په مقابل کې مقاومت د متحد قیـادت پـه ځـای د متعددو قیادتو لخوا اداره کیـږي هلتـه نـه یـواځي داچې د مقاومت د بریالیتوب چانس نا شونی دی !بلکې همالته د متعـددو قیـادتونو د بي نظمـي لـه وجې جهادي صف دخپل منځـي اختلافـاتو ښکار او مجاهدین له سختو ستونزه سره مخ دي.

افغانانو د روسي اشغال پرمهال پـه مقاومـت کې د قیادتونو د تعدد ترخه تجربه ښه ولیدلـه چـې هم یې د یونیم ملیون شهیدانو د توی شـویو وینـو پایلې ضائع کړلـې او هـم یـې لـه شـوروي اشـغال نه آزاد شوی هیـواد دوبـاره تـر امریکـایي اشـغال لاندې راوستی .

اوس چې د متحدجهادي مقاومت په ترخ کې افغانستان بیا له امریکایي اشغال څخـه د اسـتقلال درشل ته نیږدي شوی ماتي خوړلي امریکایـان او د هغوی ایتلافیان کوښښ کـوي د مقاومـت د متفـرق کولو لپاره بیلابیل تکتیکونه عملي کړي .

امریکایانو چې کلـه پـه تیـر ۲۰۱۵ کـال یـې دمجاهدینو په مقابل کې خپل شکست قبول او له افغانسـتان څخـه یـې دخپلـو ځواکونـو دپرشـاتګ اعلان وکـړ لـه هغـه راهیسي- یـې لـه مجاهـدینو سره دمخامخ پوځي مقابلې پرځای دغیر مستقیمې مقابلې لاره نیولې او غواړي د جهادي دمتحد صف د متفـرق کولـو اوشـیندلو لـه لاري لـه هغـوی (مجاهــدینو) څخــه دخپلــې مــاتې اورســوایي غچ واخلي.

مونږ وینو چې یرغلگر دښمن د دغې شیطاني اسـتراتیژي د کامیابـه کولـو لپـاره یـې مختلـف تکتیکونه تر لاس لاندې نیولي.

خــو دا چــې بیــاهم دجهــادي مقاومــت قومانـده یـوه او د دښـمن پـه شـړلو کـې لـه یـوې متحدې استـراتیژۍ څخـه استفاده کیـږي مـونږ گورو چې د دښمن دغه تخریبي تکتیکونه هـم یـو په بل پسې له ناکامي سره مخ او مجاهدینو لکه چې په پوځي دګرکې دښمن پرشاتمبولی په هماغه ډول یې دخپل منځي وحـدت او هماهنگـي پـه مـټ د دښمن ټول تخریبي سازشونه ورشنډ کړي.

د جهادي صف د متحد ساتلو په اړه الله تعالی په سورت آل عمران، سورة الأنفال اوسورة التوبة کې متعدد أیتونه نازل کړي او مسلمانان یې دخپل منځي وحدت په ټینگ ساتلو مأمور کړي.

او پـه یـادو سـورتونو کـې یـې پـه مکـرر ډول مسـلمانان لـه تفـرق، اخـتلاف او خپـل منځي شخړو څخه منع کړي:

الله تعالی دسورة الانفال پـه (۴۶) نمـبر ایـت کې مسلمانان له خپلې منځي اختلاف څخه داسـې منع کوي:

وَأَطِيعُواْ اللّهَ وَرَسُولَهُ وَلاَ تَنَازَعُواْ فَتَفْشَلُواْ وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُواْ إِنَّ اللّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ (٤٦)

که مونږ نورهم وغواړو جهادي آرمانونه مو تر سره او د الله په لاره کې ورکړې قربانۍ مو مثبتې پایلې ولري نـو بایـد چـې د دغـو الهـي ارشـاداتو مطابق مو خپلـې لیکـې متحـدې او لـه هـر ډول اختلاف او تفرق څخه ځان لیري وساتو .

# مولوي سيدمحمد حقاني رحمه الله،

## دیو فرهنګپال ،ډیپلومات ،دعوتګر او مجاهد په توګه !

دمولوي سيد محمد حقاني رح په څير دلوړو شخصيتونو دنمانځنو او دده مقام دلا لوړ حيثيت ورکولو نوره پريکړه، به دوخت مرور او راتلونکيو مؤرخينو ته پريږدو،چې هغوئ دده دماضي دخدماتو،کارنامو او ورتيا په اړه کوم ډول قضاوت کوي ،خو هغه چې زمونږ پورې اړه لري، هغه ددې دجهادي ماضي ،په فرهنګي اوسياسي لوريوکې دوخت دقلموالو شننو ته دموادو او يو سمبول په صفت وړاندې کول دي .

که څه هم مونږ دنوموړې فطري صلاحيتونه او علمي ظرفيتونه يوازې تر فرهنګپالنې يا سياسي شعور پالنې له دايرې پورې نه محدودوو،بلکې مونږ داسې وايو: چې واجب الاحترام مولوي سيد محمد حقاني رح داسلامي حکومتولۍ ،ټولنپوهنې، اجتماعيت، مينجمينټ يا اداري اموراتو او دورسپارل شويو وظايفو په هر ډګر کې دکار سړی و او دهر کار په ميدان کې تر هر چا درومبي مقام خاوند و،خوشحال بابا دداسې اشخاصو په هکله څه ښه وايي چې:

چې دستار تړي هزار دي ددستار سړي په شمار دي

که به داخلاص ميدان و ،که به دښه برخورد او حسنه اخلاقو موارد وو،که به دکاري طرفيت ډګر و،که به دروانشناسۍ يا ارواپوهنې مورچل و،که به دزهد او تقوی سنګر واوکه دجهاد په لاره کې دايثار او فداکارۍ مواضع وو،څښتن تعالی دده په وجودکې ددې داحتواء صلاحيت نغتښې و، او دا به پرې تقريبا محيط و ،شايد مونږ دې خبرو کې کومه مبالغه نوې کړې ،چاچې مرحوم حقاني صيب پيژانده، نو شايد دده له کريمه عاداتو او خصلتونو سره نابلده نه وې ،او ښايي پده کې به يې ددې نه زيات څه کتلې وي !

دمورچل اداري غوښتل چې دفضيلت مآب مولوي سيد محمد حقاني رح په باب ښه ډير مطالب دچاپ تر ماشين پورې ورسوي ،خو يو دوخت کمښت ،بل دمجلې دحوصلې تنګنا اوبل دموضوع په باب دې لنډ تنګ وخت کې دډيرو مضامينودپيدا کيدو ستونزه ،ددې لامل شوه، چې ددرانه او پر وقاره مشرمحترم حقاني رح په اړه ، يوازې په څو ګوتوشمير ليکنودده دلوی هراړخيزشخصيت نه صرف څو فصلونه او بابونه ستاسو قضاوت ته کښيږدو،خو هيله مو داده، چې که ګانده کې دجهادي مقاومت قلموال او دفرهنګي کميسون رياست مقام وکړای شي او دنوموړې دشخصيت دسپړنې او څيړنې په باب يو ځانګړی کتاب چاپ کړي، نو بويه چې څه حق به مو دده درفاقت ، ملګرتوب او مشرولۍ ادا کړی وي !

اوس همدومره! اداره

# څو شيبې د آهونو په چم کې!!!

## د (مولوي سيدمحمد حقاني رح په باب زما تأثرات)

(جرس)

امام (ابن دقيق العيدرح) په خپل نفيس کتاب (شرح الالمام فی احاديث الاحکام )کې څه ښه ليکي: الارض لاتخلو من قائم لله بالحجة ،والامة الشريفة لابد فيها من سالک الی الحق علی واضح المحجة الی أن يأتی أمرالله فی أشراط الساعة الکبری / شرح الالمام فی احاديث الاحکام ۱۷،دارالمنهاج جده .

ژ:يعنې ځمکه به هيڅکله له الهی برهان او دخدايي حجت له حامل څخه نه خالي کيږي ،په مرحومه امت کې به يو داسې سالک دتل لپاره وي، چې په مستقيمه لاره باندې روان وي، تردې پورې چې دالله تعالی امر (قيامت)راشي .

که يوې خوا بلې خوا وګورو، نو په ځمکه کې د(امام ابن دقيق العيدرح) په عقيده دقيامته پورې ديوه داسې سالک شتون چې دحق ممثل او يوه بې بيلګې الګو وي ، که په ګرده ځمکه کې نه وي، نو پخپله ټولنه کې خو يې ضرور مونداى شو، زما دمشاهدې په لنډه تنګه دنياګی ددينداری ،اخلاقو ،تواضع ،فداکارۍ او جهادي خدماتويوه داسې نمونه چې دخپل ځان يو ښه مثال او بې بديله شخصيت وي، نو بويه چې هغه به نن سبا زمونږ له لاسه لويدلې مرغلره (مولوي سيدمحمد حقاني رح ) وي، چې ما پخپلو ګناهګارو ستروګوتراوسه پورې له يو شهيد شخصيت پرته بله بيلګه نده کتلې ، تردې مخکې مې خپل يو نږدې سلف (حافظ الحاج مولوي محمدعزت الله عارف رح )داسې يو څوک کتلی و، او بيا مې دهغه له شهادته نږدې (۲۰)شل کاله پس بل داسې يو څوک دخپل خواږه ملګرې حقاني رح په شکل کې وکوت .

هسې خو مې ددروند شخصيت محترم مولوي سيد محمد حقاني رح نوم دامارت دواک په کلونو کې ډير ډير اوريده، چې کله پاکستان کې سفير و،کابل کې دخارجه وزارت معين و ،دارګ داداري چارورئس و،خو هغه چې مې ورسره بلدتيا پيدا شوه او خواله مو سره پيل شوه، نو هغه وخت و،چې داسلامي امارت دفرهنګي چارو مرستيال شو،نومورې مې رومبی وار دکميسون دمشاور صيب سره يوځاى وليد او ترکتنې لږه شيبه وروسته پوه شوم، چې حقاني رح دډيرو صلاحيتونو درلودونکی دی ،په رومبي وار يې راسره داسې صميمانه برخورد وکړ،چې مې فکر

کاوه، له کلونو کلونو نه راسره ملګری دی او ډیر
ښه وخت مو ورسره تیر شوی ،په فرهنګپالنه
کې خورا ډیر اغیزمن او دپخې تجربې خاوندو،
چې به یې کومه فرهنګي ستپه وکته، نو به یې
ورسره له فرهنګي زاویې برخورد کاوه او تل به
دتبسم او خندا نه داسې ډک و، چې تا به ویل
چې دا به کله غصه شوی هم وي او که نه !

په فرهنګی بهیر کې داسې ګڼ موارد
راغلي، چې مو پکې دده حوصله او حسن تدبر
ازمویلی،خو په معیاري کچ ومیچ پوره او له هر
پړاوه برمیال راوتلی .

له مشهور کابل میشتې ژورنالیست (وحید
مژده) سره دنوموړې خبرې مطبوعاتو ته
راووتلې ،استخباراتي کړیو ښکاره او خپرې کړې
،ما لومړی ځل له (تاند)خپلواکې! پاڼې څخه
واوریدې ،چې څه وخت وروسته مې وکوت، ورته
مې وویل دا خو عجیبه غوندې کار ونشو؟ده په
موسکاراته وویل: چې پریږده، چې دنیا ته ښکاره
شي ،چې داسلامي امارت د نفوذ مراندې دومره
اوږدې غځیدلې دي، چې آن کابل کې دننه مو هم
دهغه ځای ژورنالستان خبرونه اومشورې اخلې
،او دې کې کومه ستونزه نشته ،وي دي ،ورته
هک پک حیران شوم، چې دومره غټ کار او دده
دومره ستره حوصله او جرأت !!

کله به یې رانه پوښتنه کوله ،چې کوم کوم
ملګری لیکوال درسره ډیره قلمي مرسته کوي او
کومه لږه ؟نوورته به مې دملګرتوب او
دمشرتوب او کشرتوب له قیوداتو آزاده فضاء کې

وویل :چې دا او هغه !نو دمګړی به یې هغه ته
تلفون وکړ،چې دا .....ده سره همکارې ډیره کړه
،دا شه ونازوه ، ....صاب خوپیژني که یا !! ورسره
به یې په شونډو نری مو سکا هم غبرګه کړه
،بیا به یې ما سره دتلفون په لیکه کړ،ویل به یې
چې اوس خو خوشحاله سوي !!(خندا ).

تیرکال راته محترم مولوي سید محمد
حقاني رح تلفوني پیغام کې دبانکي نوټونو او
رسید دیوې فقهي مسئلې په باب یوه استفتاء
راولیږله ،آخر کې یې ورته لیکلې وو چې ((بینوا
توجروا)).... (مافکر وکړ ،چې ګوندې هسې
علمي ارزیابي مې کوي )نومې دمفتي محمد تقي
عثماني رح په (البحوث العصریه او دمولینا
خالدسیف الله رحمانی جدیدفقهي مسایل )
کتابونو حواله ورکړه ،سوال مې دتلفون له لارې
ځواب کړ،نودمګړی یې تلفون کې راته وویل
چې :ډیر خوښ شوم (خدای ج دې علم کې برکت
کشیږده )اوس نودزیاتونودشرعي طریقې په
هکله یوه ښه مقاله که ولیکې،نو ډیره به شه
شي ! ویل ځینې خلک نور رسومات پکې کوي
،نوکه ته دا کار وکړې،اجربه دې هم وشي اوڅه
اصلاح به وشي ، بیا به یې داسلام پاڼې له لارې
ورته خپره کړو،وعده مې ورسره وکړه ،خو هغه
مهال مې څو مسجونه پدې باب ځواب کړل ،نورو
مصروفیتونو راته، ددې مقالې دلیکلواجازه
رانکړه ،خواوس به انشاءالله تعالی په کوم مناسب
وخت کې له محترم حقاني رح سره خپله ژمنه
پوره کوم او دا مقاله به لیکم .

چې بـه اختـر شو ،نو حقـاني صيب بـه ددې پـر ځـای چې مـونږ دمبـارکی تلفـون ورتـه وکړو،نوموړی به هروخت رابانـدې مخکې کيده او دزړه لـه اخلاصـه بـه يـې راسـره مبـارکي وکـړه ،پوښتنه اګينه به يې هم وکړه، نو به مونږ تـرې ډيـره خوشـحاله او زمـونږ پـه دعـاوو کـې بـه دده ستره ونډه وشوه .

زړمبی ليدنه مې ورسره هغـه مهال وشوه، چې کله دفرهنګي کميسون مرستيال او وروستی ليدنه مې ورسـره هغـه وخـت وشوه، چې نـږدې داخـرت پـه اوږده سـفر رانـه لاړ ،شـپه مـو سـره يوځای وه، ډيرې سرې تودې مو سره يادې کړي ، دشپې يې داسې خوږې خـوږې خبـرې، لـه تبسـم نـه ډکو کيسو او پـه موسـکا ډولـه شـونډو داسـې خبرې تـه رنـګ ورکاوه ،چې تابـه ويـل چې نـور ګونـدې رانــه رښـتيا رخصـتيږې او دايـې راسـره وروستی شيبې دي ،ماورتـه کـړه، چې د مورچـل مجلې کالګنه ده، مطالب لا ملګـرو نـدې راليږلـې ،ويل اوس يې درسره ګروم، بيا يې همدا مهال پـه خپـل تلفـون راسـره ځينـې ليکـوال ملګـرې مـخ اووهڅـول ويـل نـور ....مـال بـس دی !جـزاک الله خيرا .

حقـانـي صـيب رح راتــه همـدې وروسـتـي مجلس کې وويل ، چې دمجاهدصاب يوه ښکلې مرکه مې ستا مجلې ته پيدا کړي، خولږه اوږده ده ،ځنګـه بـه شـي !ماورتـه کـړه، چې هـيڅ بـاک نلـري، دوه ګنـوکې بــه يـې خپـره کـړو، ډيـر خوشحاله شو،بيايې وويـل چې نيـت تـه بـه يـې ړومبـی ورکړوکـه ځنګـه؟ ماورتـه وويـل چـې تکراري شئ خوند نه کوي ،ويې خندل ويل سمه ته مورچل دې ړومبی خپره کړي ،بيا پانـه ،چې دادی همداسې مووکړل ......

دسبا پريکړه :

ددې شپې پـه سهار مـو سره فيصله وکـړه، چې حقاني صيب رح چې دکوم کار لپاره راغلی، هغه به سرته ورسوي اوبنده به دمجلې دکالګنې لپـاره مطالـب برابرکړي،خـوچې کلـه حقـاني رح احوال راکړي نوټول ملګرې به سره يـو ځـای کـې تـول شـو او دده پـه ويـاړبـه يـو ناسـتی چيرتـه وکړو،وخت نـا وخـت بـه مـو سره تلفـوني تماس نيـوه ،چـې ملګـرو وويـل چـې مـريض شـوی ،پوښـتنه مـې تـرې تلفـون کـې وکـړه ،چې کـه تکليـف زيـات وی زه درځـم ،ويـل هسـې معمـولي زکـام يـم ، تـه مـه راځـه بيـا احـوال درکـوم ،دوه تلفوني پيغامه چې له نيکه مرغه اوس مې هم له ځانه سره دده ديادښت په خاطر ساتلې، راته يې پکې وليکل، چې تـه اوس مـه راځـه ،بيـا زه احوال درکوم ،خو هاغه دچا خبره، زړه مـې صبـر ونه کړ ،ورغلم، چې ګورم هسپتال کې بستر دی ،په دوه ولګيدم ،ما ل اخ دا څه وينم اوڅه ګورم ؟ که ګورم هغه لويه هستې، ددايمي مخه ښې لپاره لـه دوسـتانو اجازه غـواړي ،کـه ګـورم چـې دهغـه شـاهکارې غزالـې سـترګې لـه اوښـکو ډکـې او لـه ډيرې حياء نه چاته نشي کتلای ! خو ملګـرو تـه دپرديسی په حالت کې دسر پـه اشارو د واع وداع کلمې ضبطوي !که ګورم چې نن هغـه لـوړ دنـګ (حاجي سليم ) دمرګ په بستر پـروت او دپورتـه کيدواو چاته دښه راغلاست وسه نلري ! که ګورم

چې نن هغه له موسکا ډکه خوله او ورین تندی اوس دخاورو سره خاپړې کوي !که ګورم چې اوس هغه دحوصلې غر ،دجرأت منار ،دجهاددیپلوماسی او فرهنګ ځلانده ستوری، دآسمان له افقه پریوځي !که ګورم چې نن هاغه داډ ،هغه تکیه ،هغه قلم ماتیږي، چې به مو دده په هڅونه او تشویق پنځونې کولې او به مو دده په دعاووپرمختګونه کول ،بس هغه لاړ !!هغه نور نه راځي ! هغه رانه خفه شو!هغه نور دې نیمګړي دنیا کې نه اوسیږي !هغه حورو ته ځانته وغوښت !هغه ته خپل خالق نوره هغه دنیا خوښه کړه !

هغه نور دادحسرتونو دنیاګۍ پردۍ ګڼي اوخپل اصلي ټاټوبي ته ځي !هغه لاړ هو هغه لاړ!!

آه خدایه ج !قلم مې څه نشي لیکلای !

آه خدایه ج !قلم مې ګوتو کې ریږدي!

آه خدایه ج! دا څنګه نیمګړې دنیاګۍ ده، چې دا سې متواضع ،فقیر مزاجه ،له خندا ډک ،خواخوږی او مجاهدحقاني رح یې هم رابانډې ونه لوراوه ،پریږده! چې دا جهاد خو یو وار خپل منزل مقصود ته رسیدلی وی ! پریږده چې دې سپین کاروان خو یو واربیا دکابل په ارګ داسلام سپین بیرغ رپولای وی !پریږده چې یو وار خو حقاني صیب په خپلو سترګوخپل هیواد کې شرعي نطام لیدلای وی !پریږده چې یو واردجهاد دفرهنګي قافلې دا سرخیل دمیوند دنګ څلې ته هسک شوی اودنیاوالو ته یې غږ کړی وی ،چې ای دنیاوالو! ای نړیوالو! اسلامي امارت دقرآن قانون غواړي ،سوله غواړې په امن کې دمسلمانانواوسیدل غواړې ،جها د یو فریضه ده ،ترهګري نده ،دا دفاع ده، تعرض اویرغل ندی او...........او..................او..............

خوکاش!

مرګیه !چې لږ خو دې راته زما( سلیم حاجي) پریښی وی ،چې یو ځل خو یې خپل ماشومان ،اولادونه او کونډه مور لیدلای وی! دا خو مسافر و،داخو میلمه و!داخو جهادي کار پسي وتلی و!ای کاش ..ای کاش..........ای کاش...........

خدایه ج ته یې په خپلو رحمتونو کې راونغاړه !

خدایه !ج ته یې دشهیدانو صف کې حشر ونشر وکړه !

خدایه!ج ته یې فرهنګیانوته نعم البدل ورکړه !

خدایه !ج ته یې ارمانونه پوره کړه !

خدایه ج !ته یې اهل وعیال ته ،ملګرو ته او همسنګرو ته صبرجمیل ورکړه !!

آمین ثم آمین ثم آمین !

# در فراق سيد محمد حقاني – رحمه الله !

ابوصهيب حقاني

آن گـل که به چمن بیشتر میدهد صــفا
گلچین روزگار امانــــش نمــــی دهـد
گلچین روزگار عجب خوش سلیقه است
میچیند آن گلی که به عالم نمــونه است

"قُل لَّن يُصِيبَنَا إِلاَّ مَا كَتَبَ اللّهُ لَنَا هُوَ مَوْلاَنَا وَعَلَى اللّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُون" (التوبه ٥١)

خبری به شدت غم انگیزی بود خبر رحلت و وفات عالم فرزانه، دانشمند فهیم، مبارز خاکسار، مجاهـدی فـداکار، پـدری مهربـان، امیـری شـفیق، همســنگری رفیـق، یـاور قدرشـناس و بیـدارگری دلسوز جناب محترم الحاج مولـوی سـید محمـد حقانی رحمه الله (معروف به سلیم حاجی صاحب) معـاون کمسیون امـور فرهنگـی امـارت اسـلامی افغانستان.

هیچ باورم نمی شود ولـی از آنجـا کـه مـوت حـق است و انکـار ناپـذیر، بایـد بـاور کـرد رفتن شخصیت بزرگوار حاجی سید محمد حقانی رحمه الله، به الله معلوم است که قلمـم یـارای نوشـتن ایـن کلـمات را نـدارد و قلبم از فـراق آن شـیخ عزیـز و محبوب بسی انـدوهگین و ناراحـت، و چشـمانم از غمش اشکبار است.

حاجی سید محمد حقانی رحمه الله، یکـی از شخصـیت هـای واقعـا نمونـه بـود؛ مثـل بسـیاری دوسـتان قلبـا دوسـت شـان داشـتیم، از ارشـادات و رهنمایی های شان همواره مستفیض می شـدیم، او که سرشار از امید و روحیه بود، لبخنـد شـیرین اش را که همیشه بر لب داشت و با محبت بسیار فـراوان ما را در آغوش می گرفت و در راه جهـاد و مبـارزه دلداری مان می داد را هرگز فراموش نمی کنـیم؛ او واقعا یـک پارچه انسانیت و اخـلاص بـود، صـاحب درک و درایــت، دلســوز و غمخــور، خاکســار و نهایــت متواضــع، دوســت داشــتنی و بــه شــدت محبوب یاران.

حقاني صـاحب دارای خصوصـیاتی بـود کـه حقیر در کمتر کسی دیـده بـودم و مـی بیـنم؛ فکـر نمی کنم هرکسی که با ایشـان از نزدیـک شـناخت داشته و یـا بـا ایشـان کـار کـرده و همراهـی نمـوده

است جز خاطرهٔ خوش دیگر چیزی از وی به ذهن داشته باشد؛ و اینک خبر وفات ایشان واقعا برای ما سخت و دلگیر کننده است و فقط از الله ذوالجلال استدعاء می کنیم ضمن شادی روح آن بزرگمرد، به دلهای داغدیدهٔ ما تسکین و آرامش عنایت فرموده و در فراقش به ما صبر جمیل و اجر جزیل و استقامت کامل نصیب فرماید.

آنچه که از سید محمد حقانی مرحوم در ذهن دارم بطور گذارا عبارت اند از:

**اخلاص و فداکاری:**

حقانی صاحب مرحوم چنان شخصیت اخلاص مندی بود که هر کسی با ایشان برای اولین بار ملاقات می کرد تحت تاثیر اخلاص وجودشان قرار می گرفت و چنان فداکار بود که همیشه دیگران را بر خود ترجیح می داد و زمانی خوشحال می شد که خوشحالی را در همکاران و شاگردان شان حس می کرد.

**دلسوز و با احساس:**

حاجی صاحب مرحوم یک انسان بسیار دلسوز و مهربانی بود و همیشه این موضوع را راحت می شد از حرف های شان فهمید چنان دلسوزانه سخن می گفت و چنان با درد و دلسوزی حرف می زد که دلها به وُجد آمده و دلنشینی سخنان شیرین شان کاملا احساس می شد؛ همینطور یک شخص بسیار با درد و احساس، که در انجام مسئولیت کاری از هیچ تلاشی دریغ نکرده و شب و روز نمی شناخت.

**خُبره و خوش اخلاق:**

سید محمد حقانی رحمه الله چنان در کارش و تشویق دوستان به فعالیت های جهادی خُبره و چیره دست بود که انسان اصلا در کنارشان احساس خستگی نمی کرد و چنان خوش خلق و مهربان بود که آدم می خواست ساعت ها با آن بزرگوار مجلس داشته باشد و از حرف های دلسوزانهٔ شان لذت ببرد.

**قدرشناس و با حوصله:**

حقانی صاحب مرحوم یکی از انسان های خوب خدا بود که بسیار آدم قدر شناسی بوده و اطرافیانش را نهایت احترام می نمود و با هر کسی به گونهٔ رفتار می کرد که هرگز احساس بیگانگی و دلتنگی نکرده و به شدت به کارش تشویق باشد؛ و همینطور در حوصله افزایی، نمونه بودند؛ اگر مشکلی بود و یا موضوعی را با دوستان شریک می ساخت بسیار با حوصله به نظرات تک تک شان گوش فرا داده و ارج می گذاشت، بارها اگر مزاحم وقت شان شدی، با حوصله و خوش رویی می پذیرفت و با متانت و آرامش به تمام حرف های دوستان مخلصانه گوش می داد و با علاقه مندی و احترام خاص نظر خویش را راجع به مسائل بیان می کرد.

**نرم خوی و متواضع:**

از دیگر صفات بارز حقانی صاحب مرحوم نرم خویی و تواضع شان بود؛ ایشان چنان نرم طبیعت، خون گرم و با محبت بود که هر کسی

شیفتهٔ اخلاق زیبا و نرم خویی شان شده و از همکلامی با ایشان لذت می برد؛ و در عین حال بسیار با تواضع و فروتن بود، شکسته نفس و آرام، خوش گفتار و متین، با حوصله و بردبار که امید داریم الله متعال جای ایشان را بهشت فردوس بگرداند و ما از ایشان نهایت راضی بودیم الله از ایشان راضی باشد.

موارد یاد شده، تنها مشتی نمونه خروار از اخلاق والا و خصوصیات شخصی حقانی صاحب بزرگوار بود که بیش از این نه قلمم یارای نوشتن دارد و نه هم در حال حاضر در خودم استعداد توضیح بیشتر می بینم.

جا دارد رحلت غم انگیز سید محمد حقانی صاحب را ابتداء به مقام عالیقدر امیرالمومنین – حفظه الله –، شورای محترم رهبری امارت اسلامی، متعلقین و فامیل ارجمند ایشان و تمام بزرگان جهادی و مخصوصا یار غار و رفیق همیشه همراه شان جناب محترم رئیس کمسیون فرهنگی و سایر همکاران و همران، تسلیت عرض کرده و از بارگاه الهی برای آن بزرگوار جنت الفردوس و برای بازماندگان شان صبر جمیل و اجر جزیل را مسئلت نمائیم.

اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، وارْحمْهُ، وعافِه، واعْفُ عنْهُ، وَأَكرِمْ نزُلَهُ، وَوسِّعْ مُدْخَلَهُ، واغْسِلْهُ بِالماءِ، والثَّلْجِ، والْبرَدِ، ونَقِّه منَ الخَطَايَا، كما نَقَّيْتَ الثَّوب الأبْيَضَ منَ الدَّنس، وَأَبْدلْهُ دارا خيراً مِنْ دَاره، وَأَهْلاً خَيْراً منْ أهْلِه، وزَوْجاً خَيْراً منْ زَوْجِه، وأدْخِلْه الجنَّةَ، وَأَعِذْه منْ عَذَابِ القَبْرِ، وَمِنْ عَذَابِ النَّار.

## دجهاد د مشروعیت یو ستر حکمت

**قال الله تعالی: ولولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لهدمت صوامع و بیع و صلوات و مساجد یذکرفیها اسم الله کثیرا ولینصرن الله من ینصره ان الله لقوی عزیز} ۴۰ { سورة الحج.**

**ژباړه : که الله تعالی ځیني دخلقو په ځینو نوروسره نه دفع کولای نودنصاراوو عبادت خاني دیهودو معبدونه اودمسلمانانو هغه مساجد چې دالله تعالی ډیرذکر په کې کیږي ،ړنګ شوي اووران شوي وای .او الله جل جلاله اورمرو دهغه ډلې مرسته کوي چې دالله تعالی ددین مرسته کوي اوبې شکه چې الله تعالی ډیر قوي اوغالبه دی.**

**تشریح: لکه وړاندې دموسی علیه السلام په دین کې دجهاد دمشروعیت یوحکمت داو چې د هغه مهال عبادتخانې ورانې نشي- او خلګ دالله تعالی له عبادته ونه ګرزي ،همداسې یې دعیسی علیه السلام په دین کې هم یوسترحکمت داوچې دوخت دعبادت مراکز وران نشي ، داسې دآسماني دینونو ترټولو په وروستي دین اسلام کې هم دجهاد دفرضیت یوه لویه موخه داده: چې اسلامي شریعت دالله تعالی په ځمکه خپور[نافذ] شي، خلق دیوه الله جل جلاله عبادت وکړي ،مساجد دالله تعالی په عبادت کونکو ډک شي . اودآیة په پای کې وویل شول چې الله تعالی به ددغې ډلې مرسته وکړي اوالله تعالی ډیر قوي اوغالبه دی.**

# قلمي جهاد

د عابد لېکنه

دالله تعالی په لاره کې دجهاد دسپېڅلې دندې دېرمخ بېولو له ډېرو انواعو څخه یوه هم قلمي جهاد دی، که څه هم ددنیا له پرمختګ او عصریتوب سره به داخبره خلک کوي چې اوس خوپه لیک کې دقلم ونډه کمه ده اودنن سواد ترکمپیوتر اوزده کړې یې تړلې° خوقلم سره له دې چې الله تعالی لوړ مقام اوارزښت ورکړی، په اړتیا او لرغوني ارزښت کې بیاهم نني عصري وسایل ترې پروا نه دي او ډېرځله له داسې حالاتو سره موږ مخ یو، چې خپل یادښتونه له قلم پرته نه شوخوندي کولای . بله داچې هیڅ داسې مرجع اومانع هم نه شته چې دنن نوي ادبي، علمي، او هرډول لوړې لاسته راوړنې دقلمي پرمختګ له اصطلاح څخه بېلې کړي .

اوس خو په هرځای کې دمتخاصمو جهتونو دزور آزمایني زورروره وسله مطبوعات اورسنۍ دي، ځکه په نني دنیاکې چې میډیا اومطبوعات خلک په کوم ډول څملوي، بله هیڅ داسې وسله اووسیله یې نه شي څملولای، همدا لامل دی چې زمونږ ټولو دښمنانو مونږ ته دا سنګر ټینګ نیولی اوتل یې له دې مورچله په ټوله کې ټول مسلمانان او په ځانګړي توګه مجاهدین ویشتلي یو، ځکه به نو له نورو ټولو خبرو تېریږو او یواځې په مطبوعاتي برخه کې به خپل قلمونه وارزوو چې ترکومه حده یې دغه سنګرګرم ساتلی او کومې لارې چارې لاهم نظر انداز دي .

لکه پورته مو چې یادونه وکړه دنن قلم په ټولو هغو لارو چارو اطلاق دی چې یومبتکر ذهن یې دسواد په لارکې په هرډول نویو وسایلو پیاده کوي، همدغسې په مطبوعاتي میدان کې هم ټولې هغه کړنې ترسره کول اوهغه چارې خپلول رښتینی قلمي جهاد دی، چې په دې برخه کې یې مؤثریت دنوروچارو په پرتله زیات وي، دې ټکي ته باید په سطحي نظر ونه ګورو،بلکې دقلمي جهاد په سنګرکې یې ترټولو لوړ اصل وګڼو، ځکه مؤثریت یې تر دومره حده زیات دی چې حتی دډېر مبتکر اوساحرانه قلم اغېز هم ننګولی شي، داسې چې که مونږ هرڅومره مؤثراونازک خیال

قلم ولرو، خو چې ليکنه مو تل له يوده داسې سنګره وي چې هغه ددښمن متقابلو شعاعو اغېزمن کړي وي مؤثريت به يې ډېرکم وي اوخلک به يې ځکه نه لولي چې په طرف کې به يې بولي، دايوداسې ډول دفع اوپخول دي چې درد يې هم همداسې باريک ذهنونه درک کولای شي، داسمه ده چې دغه سنګر بايد پرېښودل شي، خوهدف ته په رسېدوکې له نورو څخه هم بايدکاروا خيستل شي اوټولې هغه لارې چارې خپلې شي چې دښمن ته په دې ډګرکې ضربه ورکولای شي.

له دښمن سره دمسلحانه جهاد ترڅنګ دمطبوعاتي سنګر داهميت اوارزښت په اړه به خبره نه اوږدوو په دې اړه ډېر څه ويل شوي اوترډېره له دغه ارزښت څخه اوس څوک انکار هم نه شي کولای° يواځې دېلګې په ډول به په هيوادکې دمجاهدينو دفتوحاتودڅپو په راتلوسره ددښمن په هغه کړنو يوڅه وغږېږو چې دمعرکې په ډګرکې له هرډول مقابلې دپاتې راتلو په صورت کې يې له مطبوعاتي وسايلوڅخه دوروستۍ وسلې په توګه کار واخيست، البته دژورناليزم له ټولو نورمونو خلاف يې دتهمت اوافتراء لارېکې غوره کړه .

کله چې مجاهدينو دکندز ولايت فتح کړاودښمن له ټولې زورآزمايۍ سره سره له طالبانو ماتې ومنله،ډېرو غرضي اوپه طرف کې واقع رسنيوله منل شويو مطبوعاتي اصولو تېرى وکړ اوپه هيڅ يې له طالبانوسره ځان په دښمنۍ کې ښکېل کړ، په تېره د"طلوع" او "يک" تلوېزونونو په داسې بې شرمانه تبليغاتو لاس پورې کړ، چې هيڅ ډول اساس يې نه درلود،په عين حال کې نورو غربي رسنيويې هم ددې په ځای چې وضع شوي اصول په پام کې ونيسي ° ددوی خبره ورسره غبرګه اود "دداسې ويل کيږي" په نادرستې جملې سره يې دې افواهاتو ته هوا ورکړه، په مجاهدينو يې تهمتونه پورې کړل اوپه ټوله بې شرمۍ يې داسې راپوررونه جوړول، چې هيڅکله يې په سپيناوي اوثبوت ونه توانېدل، ولې داچې دښمن ته نور هيڅ ورپاتې نه و، نو همداډول بې اساسه اوبې بنياده راپوررونوجوړولوته يې دوام ورکړ، دنيا هم داهرڅه ليدل اوڅارل، هيچا اوهيڅ نړيوال مطبوعاتي ارګان پرې غوږ ونه ګراوه، ترڅو مجاهدين مجبورشول اوپه نظامي عکس العمل ښودلو سره يې دهغوی شر له ځانه دفع کړ.

له دوو ټکو دې جريان ته وګورئ! که دمؤثريت له نظره ورته ګورئ، نو ډېر هغه پاک ذهنونه چې دمطبوعاتو له نني تحريف نه خبرنه دي° په دې خبروشايدترډېره په تشويش کې شوي وي اودطالبانو په باب يې بل فکر اخيستی وي، ورسره وګورئ! څه ډول په ګرم سنګر کې دوسلې مؤثريت دقلم په وړاندې کمېدای شي، دلته ددغسې مطبوعاتي ګوزار په وړاندې دفع د چټک غبرګون په ډول په ډېرو نورورسنيزو لارو سره هم کېدای شوای چې ميدان ببرته مونږ وړی وای اودښمن نور هم رسوا شوی وی، همدغسې ګوزا

اوهمدغسې دفع قلمي جهاد دی اوترهمدومره حده ورته اړتیاده .

راځۍ ځان په هغه څه تېرنه باسو چې دخپلو مطبوعاتو اومطبوعاتي کړنو لپاره یې مونږ وینو، بلکې دیودریمګړي اوهغه چا په سترګه به ورته وګورو چې زمونږ په مطبوعاتوکې هیڅ دخل اوکار نه لري اوله بهرنه ورته ګوري، شایدزمونږ نیمګړتیاوې او کمزورۍ هم تربل هرچا همداسې څوک ښې ولیدلی شي، زمونږ دمطبوعاتو په مؤثریت کې هغه څه چې مونږ یې خپله لاسته راوړنه بولو، شاید دی یې دهغو خواله رسنیو زېږنده وبولي چې ترډېره یې کارکوونکي رضاکار مجاهدین او نور خواخوږي نظرونه دي ، نه دمجاهدینو دقلمي جهاد دسنګر مؤظفین اومسؤلین، ځکه شایدهغوی به تردې وخته په خپل تشکیل کې لادخواله رسنیو لپاره فعاله شعبه اوځانګه هم ونه لري، چې په دې برخه کې پراخ کار وکړي .

په همدې ډول باید خپلې چاپي خپرونې وارزوو اومؤثریت یې وڅېړو، داسمه ده چې نویو برېښنایي وسېلو دومره اغېز نه دی ښیندلی چې چاپي خپرونې یومخ خپل ارزښت له لاسه ورکړي اوپه هیڅ حساب شي، بلکې هره یوه یې بېل حیثیت او خپل خپل ځای لري، ولې هغه څه چې بریالیو اومؤثروچاپي خپرونو پرې دنن ورځې لوستونکی رانیولی اوله نویو برېښنایي وسایلو سره سره یې بیاهم خپل لوستونکي له لاسه نه دي ورکړي ° باید وپلټل شي اودبریادغه رمزونه په ګوته شي .

په نني مطبوعاتي جهادکې به زمونږ اوزمونږ دقلم دوندې ارزونه په دووټکوکې رالنډه کړو، هغه داچې یوزمونږ هیوادوالواونړیوالوته دخپلې حقې داعیې رسول دي اوبل دمتقابلو مطبوعاتو اورسنیودګوزار دفع اوځواب دی، پرموږ ګوزارېې هم دوه اړخه لري یوهغه چې مخامخ مونږ ته متوجه وي اوبل هغه چې زمونږ په اړه عامه ذهن بدلوي .

ددغودوو ټکو په نظرکې نیولو سره به په مطبوعاتي جګړه کې خپلې په کارلوېدلې هڅې وارزوو او وبه ګورو چې ترڅومره حده زمونږ شته مطبوعاتي مورچلونه په دې لاره کې بریالي دي؟

له برېښنایي، اجتماعي اوارتباطي رسنیونیولې بیاترچاپي خپرونو پورې ټولې ترنظرتېرې شې، که چېرته یواځې په هغه څه بسنه کوو چې مونږ یې له دغو هڅو لاسته راغلې بریاګڼو، شایدچې په دې کې به تېروتي یو، بلکې ترټولو مهم ټکي هغه دي چې له مونږ پرته یې نورخلک زمونږ بریا، یا نیمګړتیا بولي، چې له درک کولو وروسته تربحث لاندې ونیول شي .

# د اسلامي امارت

# د نوي قيادت مدبرانه اقدامات!

**حقمل ضياء**

د هر قائد او رهبر لپاره د ځينو نورو ځانګړتياوو تر څنګ با تدبيره اوسېدل او مدبرانه پرېکړې کول يو ډېر ضروري شرط او عمل دی؛ په ځانګړي ډول د هغو مشرانو لپاره چې د اسلامي امت رهبري په خپله غاړه ولري.

د اسلامي امت د مخلص او باوقاره مشر اميرالمومنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمة الله عليه) دوفات د خبر خپرېدل، او د اسلامي امارت د نوي قائد اميرالمومنين ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) د انتخاب، دواړه مهم او سرنوشت سازه موضوعات په داسې حال کې منځ ته راغلل، چې حالات ډېر زيات حساس او د بدلون په پړاو کې وو، د مجاهدينو جهادي بهير بشپړ ځپاند شوی وو، د فتوحاتو پرله پسې لړۍ روانه وه، د اسلامي امارت دښمنانو د تفرقه اچونې هڅې تندې کړې وې، د اشغالګرو د اشغال ستراتيژۍ د تزلزل سره مخ وې او دوی د تېښتې او پاتې کېدو له نا معلوم حالت سره مخ وو، ګوډاګې ادارې په اوبو کې چاړه ليدلې وه ،نو په همدې سبب په سيمه کې د نوو همکارانو په لټه کې وو او بالاخره سيمه د داسې ګڼو جرياناتو شاهده وه، چې د هر چا لپاره د تدبر نه ډک اقدام پکار وو.

دا چې د پورته ذکر شوو موضوعاتو تړاو له اسلامي امارت او د مقابل جانب سره وو ،نو په همدې سبب نوي مشر تابه ته د دغو حالاتو په وړاندې يو سنجيده دريځ او عمل پکار وو، چې له يوې خوا څخه مجاهدين متحد او منظم کړی شي او پوځي پرمختګونو ته دوام ورکړل شي او له بلې خوا څخه د سيمې له حالاتو سره په داسې ډول تعامل وشي، چې دښمنان ترېنه د ځان لپاره ګټه ونه کړی شي او له ناهيلی سره مخ شي.

د اسلامي امارت نوی زعيم اميرالمومنين ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) چې اميرالمومنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمت الله عليه) په خپل ژوند کې هم د امارت د نيابت مسؤوليت ور له غاړې کړی وو، ټولې چارې هم ده پرمخ وړلې او د امارت له هر قسم مشکلاتو، تشکيلاتو او اصولو سره اشنا و، نو په همدې سبب د نوي زعيم په توګه له ټاکل کېدو وروسته په ډېره کمه موده کې د خپلو مخلصو او وفادارو همکارانو په مرسته او کومک په دې وتوانېد ،چې اسلامي امارت په صحيح ډول رهبري کړي، بې شمېره

لاسته را وړنې ولري، او خپل مدبرانه قیادت ثابت کړي، چې د بېلګې په ډول مو لاندې څو نکتو ته پام اړوم.

۱ ـ د وحدت په برخه کې: دا چې وحدت او اتفاق د هر چا لپاره یو ډېر ضروري اصل دی او هیڅ ټولنه او اجتماع د اتفاق پرته دوام نه شي موندلی، نو په همدې سبب د اسلامي امارت نوي مشر تابه د مجاهدینو ترمنځ په خاص ډول او د ټول مسلمه ملت ترمنځ په عام ډول د وحدت لپاره ډېر کوښښ کړی دی.

د نوي زعیم تر ټاکل کېدو وروسته د بیعتونو مسلسل جریان، او په منظم ډول له دغو جریاناتو څخه د ټولو مسلمانانو خبرول او بیا وروسته د امیرالمومنین (حفظه الله) له لوري د دغو بیعتونو قبول؛ یو وار بیا ټول مجاهدین، مخلص مسلمانان او د اسلامي امارت پلویان د یوه اسلامي امارت او د یوه امیر تر قیادت لاندې راټول کړل او د دښمنانو هغه هڅې او شوم امیدونه چې دوی د اسلامي امارت د تفرقې لپاره لرل، ټول شنډ شول.

د ځینو محدودو او د ګوتو په شمار خلکو پرته نورو ټولو هغو خلکو چې مرحوم امیرالمومنین یې خپل رهبر ګاڼه، له نوي امیر سره بیعت وکړ؛ او په دې سره نه یوازې دا چې د اسلامي امارت هغه قوت او اهمیت چې له پخوا یې درلود، په خپل ځای پاتې شو، بلکه له پخوا لا زیات غښتلی او مجاهدینو خپلې مبارزې ته لا زیات ژمنتیا څرګنده کړه.

۲ ـ جهادي بریاوې: نوی قیادت په دې وتوانېد، چې ټول مجاهدین په کمه موده کې سمبال کړي، د نویو، خورا لویو او بریالیو عملیاتو لپاره پلان ګوزاري وکړي، د دښمن په وړاندې پرمختګونه ولري، د جګړې تحرکات او کنټرول په خپل لاس کې واخلي، په پرله پسې پرمختګونو سره د دښمن د مقاومت روحیه له منځه یو سي او بالاخره نیول شوي سیمه وساتي.

په دې وروستیو کې د مجاهدینو بې ساري پرمختګونه هېښوونکي دي او هیڅ چا هم دا فکر نه کاوه، چې په دې موده کې چې لا تراوسه پورې د اشغالګرو عسکر، پرمختللي وسلې او ډول ډول الوتکي لا هم له ګوډاګیانو سره په جګړو او چاپو کې مل دي او مجاهدین دي بیا هم دومره لوي پرمختګونه وګړي او ستراتیژیکي سیمې تر خپل کنترول لاندې راولي.

د اشغال ګرو د وروستیو احصایو له مخې سږ کال د ګوډاګي عسکرو مرګ ژوبله د تیر کال په پرتله ډېره زیاته شوی ده؛ هم دغه فو ځي فشار دی، چې دښمن دومره په پراخه کچه ځپل شوی دی، چې اوس له مقاومت پرته سیمې خوشې کوي، ډلې ډلې حکومتي ځواکونه مجاهدینو ته تسلیمیږي، د

ګوډاګیانو مشران چې له جنګه ستړي شوي، نه د خپلو سربازانو له حاله خبر دي، نه د نېول شوو سیمو د بیر ته نیولو خبرې کولای شي او نه هم د پاک سازی په نوم عملیاتونه ترسره کولای شي.

دغه پور تني موارد ټول د مجاهدینو بر لاسي توب او د نوي مشر-تابه مدبرانه اقدامات څرګندوي.

۳ ـ د داخلي اصلاحاتو په اړه : د اسلامي امارت نوي مشر تابه د نورو مهمو موضوعاتو تر څنګ د مجاهدینو داخلی اصلاحاتو ته خاصه پام لرنه لري؛ ځکه چې یو جهادي صف د شرعي اصولو له مراعت کولو پرته هیڅ پرمختګ نه شي کولای، د الله (جل جلاله) مرسته او کومک نه شي خپلولی او د مسلمه ملت اعتماد هم نه شي تر لاسه کولای.

په دې وروستیو کې امیرالمومنین (حفظه الله) په خپلې مخابروي وینا کې مجاهدینو ته لارښوونه وکړه، چې په جهادي صفونو کې دي بې بړیري (لغړزني) تنکي هلکان پرې نږدي او دغه هلکان دي په دیني مدرسو کې سبقونه ولولي؛ د امیرالمومنین په دغه وینا د عمل په نتیجه کې له یوې خوا څخه جهادی صفونه د نا مشروع اړیکو او بد نامۍ څخه ژغورل کیږي او له بل پلوه یو داسې نوی جهادي نسل روزل کیږي ،چې په دیني علومو کې پوره پوهه ولري.

دې ته ورته نور ډېر اقدامات شوي، چې د داخلي اصلاحاتو په اړه د نوي قیادت توجه څرګندوي.

۴ ـ له ولس سره ښې اړیکې : د نوي قیادت په راتګ سره له ولس سره مجاهدین ډېر زیات نږدې شوي دي او ولسي خلکو له مجاهدینو سره خپل همکاري پیل کړي ده او د وروستیو کامیابیو راز هم له مجاهدینو سره ولسي همکاري ګڼل کیږي.

دا چې د هیواد اکثریت نفوس په اطرافي سیمو کې هستوګنه لري او اوس مهال اطرافي سیمې تقریباً ټول د مجاهدینو په لاس کې دي او د ولس اکثریت نفوس د مجاهدینو تر واک لاندې سیمو کې په بشپړ امنیت او هوسا ډول خپل ژوند تیروي ،نو په همدې سبب د ولس همکاري له مجاهدینو سره مخ په ډېریدو ده.

د کندز د فتحې په ورځو او شپو کې حکومتي چارواکو په زغرده اعتراف وکړ ،چې ولس له طالبانو ملاتړ کوي او په کورونو کې ورته ځای او ډوډۍ ورکوي.

دا چې د ولس همکاري له مجاهدینو سره مخ په زیاتیدو ده ،مهم علتونه یې د مجاهدینو له لوري له ولس سره ښې اړیکي او چلند، ولسي-خلکو ته د امنیت فضا برابرول، د فساد مخه نېول او د

شریعت پلي کول دي؛ نوی مشر تابه هم همېشه په مجاهدینو تاکید کوي، چې له ولس سره ښه چلند او د خپلو شته امکاناتو په اندازه دي د دوی خدمت وکړي.

۵ ـ د سولې په اړه : دا چې د سولې او مذاکراتو په نامه دښمن ډېر بې ځایه تبلیغات کوي او تشویش اچوونکې خبرونه خپروي ،نو په همدې سبب د اسلامي امارت نوي مشر-تابه په دې اړه یو ځرګند دریځ خپل کړی دی او ټولو مسلمانانو او مجاهدینو ته یې ډاډ ورکړی دی، هیڅ کله به په دین سودا ونه شي.

امیرالمومنین ملا اختر محمد منصور (حفظه الله) هم په خپلو ویناوو کې ټولو مسلمانانو ته ډاډ ورکړی دی، چې زموږ نهایي هدف د شرعي نظام قیام دی او د دښمنانو تبلیغاتو او تشویش اچوونکو خبرو ته غوږ مه نیسئ.

د اسلامي امارت نوي مشر تابه مسلمانانو ته خپل دریځ اعلان کړی دی، چې د جهاد تر څنګ د قران او حدیث د ارشاداتو مطابق سیاسي فعالیتونه د نبوي سیاست یوه برخه ده او په دې کې هیڅ کوم مشکل نشته؛ اسلامي امارت که له چا سره په کوم موضوع خبرې کوي ،جریان به یې له مسلمانانو پټ نه ساتل کیږي، له شرعي اصولو تنزل به نه کیږي او همدارنګه که څوک موږ سر ه د خبرو له لارې شرعي نظام ته غاړه ږدي نو موږ ورسره مشکل نه لرو.

اسلامي امارت په سیاسي برخه کې د منظم فعالیت لپاره سیاسي دفتر جوړ کړي دی او د سیاست په برخه کې کارونه یې په همدې دفتر پورې تړلي دي، دا د دې لپاره چې له یوې خوا څخه د اسلامي امارت لپاره یو معلوم ادرس موجود وي او له بلې خوا څخه د علماوو او پوهو اشخاصو په مشرۍ دغه دفتر د اسلامي شریعت د اصولو په رڼا کې خپل فعالیتونه پرمخ یو سي.

٦ ـ د کندز د فتحې په جریان کې : د اسلامي امارت د نوي قیادت له مدبرانه اقداماتو څخه یو هم د کندز د فتحې جریان وو.

د اسلامي امارت مشر تابه په مدبرانه ډول و کړای شو،چې د کندز د فتحې لپاره منظم پلان جوړ کړي، مجاهدین منظم کړي، او په ښه ډول د خپلو قوماندانانو په مشرۍ یې رهبري کړي؛ له فتحې وروسته سم دستې د اسلامي امارت مشر تابه مجاهدینو ته د فعالیتونو لپاره اصول وضع کړل او ټولو هغو خلکو ته چې په ګوډاګۍ اداري کې یې دندې ترسره کړې وې، د خپلو دندو د پرېښودو په بدل کې عامه بښنه اعلان کړه.

مجاهدینو د دښمنانو د هر قسم حملو او فشارونو با وجود د کندز ښار تر دوه اونیو تر خپل کنټرول لاندې وساته، خو دا چې د کندز د ښار دننه مقاومت ګټه نه درلوده او په عین حال کې ولس له

سختو کړا ونو سره مخامخ کېده او دښمنانو هم په هيڅ چا صرفه نه کوله، نو په همدې سبب د اسلامي امارت نوي قيادت مجاهدينو ته له ښاره د عقب نشينۍ امر وکړ.

د کندز د فتحې منظم جريان دښمن دې ته مجبور کړ، چې د اسلامي امارت د نوي مشر تابه په قوي قيادت او رهبرۍ اعتراف وکړي.

۷ ـ د فساد په مقابل کې: لکه څنګه چې د اسلامي امارت باني ثالث عمر اميرالمومنين ملا محمد عمر مجاهد (رحمت الله عليه) خپله مبارزه د هغو جهادي ډلو ټپلو په مقابل کې پيل کړې وه، چې د شوروي ځواکونو او د کمونيزم له ماتي وروسته د قدرت په خاطر په خپلو منځو کې سره اوښتي وو او فسادونه يې پيل کړي وو؛ نوي قيادت هم د فساد او مفسدينو په وړاندې دغسې اقدامات وکړل، چې د بېلګې په ډول د ننګرهار او زابل ولايتونو کې د داعش په نوم د هغو وسلوالو ځپل چې په دې سيمو کې د اسلامي امارت څخه يې بغاوت اعلان کړی وو، په سيمو کې يې له مجاهدينو سره جګړې پيل کړې وې، غلاوې او اختطافونه يې کول، د سيمې خلک يې ځورول او همدارنګه ځينې نور کارونه.

د اسلامي امارت نوي مشر تابه تر ډېره حده د دغو خلکو د پوهولو، اصلاح او د خبرو له لارې د موضوعاتو د حل کوښښ وکړ، مګر هيڅ نتيجه يې ورنه کړه او دغه کسانو هم هيڅ قسم روغ نيت نه درلود، چې بالاخره مجاهدين دې ته مجبور شول، چې د دوی په وړاندې اقدام وکړي، همدارنګه په دې وروستيو کې مجاهدينو په مختلفو ولايتونو کې هغه کسان نيولي او شرعي سزا يې ورته ورکړې ده، چې د پيسو لپاره يې تښتوني کولې.

۸ ـ وروستي پرمختګونه: دا چې د ژمي موسم را رسېدلی دی، خو جهادي بهير د سستېدو پرځای ورځ تر بلې د ګرمېدو په حال کې دی، ددښمنانو په مهمو مراکزو مجاهدينو د کره هدف مند او کارنده استشهادي بريدونو بر سېره مجاهدينو په دې وروستيو کې دښمن ته په جبهيي جنګونو کې هم ماته ورکړې ده، چې ښه ژوندي مثال يې د هلمند د سنګين او خانشين او د فراه ولايت د ګلستان ولسواليو فتوحات دي؛ چې دښمن د خپل ټول قدرت او طاقت سره د دغو سيمو د ساتلو کوښښ وکړ، مګر هيڅ شئ يې لاسته رانه وړ.

د روان ژمي په موسم روان تند جهادي بهير د مجاهدينو د قوي عزم او د نوي مشر تابه د مدبرانه قيادت څرګندونه کوي او د هيواد د بشپړ او سرتاسري فتحې زېری له ځانه سره لري.

که څه هم ډېر نور داسې اقدامات شته، چې د نوي قيادت په مدبرانه رهبرۍ دلالت کوي، خو د موضوع د اوږدېدو په وجه پور تني يو څو موارد مو د مثال لپاره کافي و بلل.

# ۲۰۱۵ میلادي کال کې جهادي بهیر ته کتنه!

د اشغال پر خلاف د جهاد یو بل کال تیر شو،۲۰۱۵ م کال چې د جهاد په تیره څوارلس کلنه دوره تر ټولو د ټاکوونکي او امیدبښونکي کال نوم ورباندې ایښودلی شو،دې کال ګڼ، تحولات،حوادث او ناټاکله پیښې له ځان سره درلودې،چې د ټولو سیاسي، پوځي، ټولنیزو، فرهنګي او نورو جریاناتو احتوا یې ددې لنډې لیکنې د وس خبره نه ده، نوځکه په دې لیکنه کې یوازې د جهادي ډګر په مهمو پوځي پیښو، پرمختیاوو او سوبو رڼا اچوو.

**کال څنګه پیل شو؟**

۲۰۱۵ م جهادي کال له پیله د مجاهدینو د بریالیو سره همغاړی و،ددې کال لومړی میاشت جنوري له دې سره چې د موسمي نامساعدتیا له امله د جهادي بریدونو د کمښت موسم بلل کیږي او هرکال په کې ترټولو لږ جهادي عملیات وي مګر بیا هم د لاندې بریدونو غونډې د مهمو پیښو شاهده وه. د جنورۍ په ۴ مه د کندز دوه مهم اربکي قوماندانان، دبرکي برک د اربکیانو مشر خلیل او د غزني د قره باغ جنایي آمر ووژل شو،په ورپسې ورځ کابل نهمه حوزه او د ننګرهار له هوایي ډګر سره بهرنیان په فدایي حملو کې له منځه لاړل،٦ مه بدخشان تګاب کې مجاهدینو پراخ برید پیل کړ،۷ مه د خوست د پولیسو په اکاډمۍ د فدایانو پراخ برید،په مرکزي بغلان کې ۱۲ عسکر مړه ۱۲ تسلیم شول، ۱۰ مه د پکتیکا دوالي په کاروان برید، ۱۲ مه د زابل دمیزاني امنیه قوماندان ووژل شو او د هلمندپه نوزاد کې یوه نفوذي پولیس مجاهد له ولسوال پرته دقوماندان په ګډون د ولسوالۍ ټول چارواکي ووژل، ۱۴ مه د المار امنیه قوماندان او جنایي مدیر ووژل شول،۱۸ مه لښکرګاه کې په پولیسو فدایي برید،۲۱ د غور مرکز ته څیرمه لسګونه اربکیان تسلیم شول او د کندز په امام صاحب کې مجاهدینو پنځه سترې سیمې له اربکیانو تصفیه کړې، دغه راز له معمولو بریدونو، چاودنو او هدفي حملاتو سره یوځای په دښمن ستر بریدونه هم جاري پاته شول

چې د هرې ورځې په تیریدو سره یې زور اخیست تردې چې وروسته د فتوحاتو او سیمو د ازادۍ لړۍ پیل شوه.

## فتحه شوې سیمې، ولسوالۍ او ددښمن مرکزونه

په تیر ۲۰۱۵ میلادي کال کې له نظامي اړخه د مجاهدینو یوه ښکاره بریا دا وه چې په لومړي ځل په پراخه کچه د دشمن د پوستو، بیسونو، کنډکونو او ولسوالیو د فتحو بهیر پیل شو، الله تعالی مجاهدینو ته د هیواد په پراخه اراضي تمکین حاصل کړ، ډیرې سیمې، درې او مناطق ددښمن له شتون نه تصفیه شوې چې دلته به ورته په لنډو اشاره وکړو.

د ۲۰۱۵ م کال له لومړۍ نیټې بیا تر وروستۍ ورځې پورې مجاهدینو د هیواد په لر او بر کې د کندز ولایت په مرکز سربیره ۳۴ ولسوالۍ فتحه کړې چې مطلق اکثریت یې تراوسه په خپل واک کې ساتلي دي او څو یې بیرته دښمن تصرف کړي دي، دغه ولسوالۍ چې مراکز یې په تیر کال کې مجاهدینو فتحه کړي او اکثره اوس هم د مجاهدینو په ولکه کې دي نومونه یې په دې ډول دي: د فراه بکوا، خاک سفید، بالابلوک، گلستان، د بادغیس جوند، د غور چارسده، د پنجشیر دره عبدالله خیل، د بدخشان یمگان، بهارک، د بغلان تاله وبرفک د هلمند نوزاد، موسی کلا، سنگین ، خانشین او د موسی کلا په حدودو کې د باغران د ولسوالۍ مقام ، د هرات غوریان، د کندز دوه ځله چاردره ، دشت ارچي، قلعه زال او امام صاحب، د نورستان وانټ وایگل، د سرپل کوهستانات ، د پکتیکا گواشته، د تخار اشکمش، ینگي کلا، خواجه غار او درقد، د لوگر خروار، د جوزجان خم آب، د فاریاب خواجه ناموسی او گرزیوان، د کندهار غورک، د غزني خوگیاڼي او د ناوې مرکز چې دشمن نیولی و بیرته تری ونیول شو.

په یادو فتوحاتو سربیره د کال یوه مهمه او تاریخ سازه پیښه د سبتمبر په ۲۸ مه نیټه د کندز ولایت مرکز چې د افغانستان شپږم تر ټولو ستر ښار دی فتحه وه، ددې سوبې په لړ کې مجاهدینو د کندز د ولایت مقام، قومنداني، بالاحصار او ټولو ریاستونو او بازار په شمول دغه ولایتي مرکز تر کنترول لاندې راوست او د هوایي ډگر له ځینو تاسیساتو پرته یې په ښار یوه نیمه اونۍ واک وچلاوو، چې وروسته ددشمن د بې رحمانه بمبار او اولسي زیانونو څخه د مخنیوي په خاطر له ښاره ووتل، د کندز په فتحه کې مجاهدینو د کندز

زندان مات کړ،د ملي امنيت اسناد يې ترلاسه کړل او زرګونو ميله وسلې او څو موټره مهمات يې ونيول، مجاهدينو د نظامي مصالحو په بنياد د خپلو ترلاسه کړيو غنائمو دقيقه شميره او اندازه ډاګيزه نه کړه اما حکومت د خپل حقيقت ياب پلاوي په راپور کې ومنل چې طالبانو ٣٧ هاموی شوبلې دوه ټي ٦٢ روسي ټانګونه او له زر ميله ډير د ملي اردو ټوپک په شمول د ګڼو د شپې دوربينونو د غنيمت په توګه ترلاسه کړي دي.

د کندز غونډې مجاهدينو د غزني،زابل،روزګان او غور ولايتي مرکزونو ته هم تر دې حده ور لنډ شول چې حکومتي چارواکو ترې په تيښته پيل وکړ، په غزني کې مجاهدينو د سبتمبر په ١۴ زندان مات کړ او ۴٠٠ بنديان يې را خلاص کړل،د يادو ولايتي مراکزو په تهديد سربيره مجاهدينو په تير کال د خپل پرمختګ په لړ کې وتوانيدل چې د بغلان،هلمند او فارياب ولايت مراکزو ته هم دومره ځانونه نږدې کړي چې مرمۍ يې دولايت په ودانيو ولګيدلی شي.

که دواک او سيطرې د سيمو د پراختيا او پوستو او بيسونو د فتحې په اړه ووايو نو ويلی شو چې تير کال د هيوادپه ټولو ولاياتو کې دغه بهير خورا بريالی او د قناعت وړ و، تير کال د هيواد په ټولو ولاياتو کې پراخې سيمې ددښمن له وجودڅخه تصفيه شوې او ددښمن د پوستو او مراکزو ټغر ترې ټول شو.

کندز کې له چاردرې، ګورتيپې، قلعه زال،امام صاحب، ارچي، علي اباد او خان اباد له اقتاش سيمې د اربکيانو لمن ټوله شوه،مجاهدينو تقريبا په ټولو سيمو واکمن شول او کندز ښاريي تر محاصره لاندې ونيو، په بغلان کې به مرکزي بغلان کې د پوليسو ګڼ شمير پوستې او کنډکونه فتحه او له منځه لاړل،په دهنه غوري کې درې کنډکونه او ګڼې پوستې دغه راز د پلخمري په مربوطاتو کې ډيرې سيمې او کلي ازاد شول،د بغلان په تاله وبرفک،ډنډ غوري او بورکه کې هم ډيرې سيمې ازادې شوې.

په بدخشان د وردوج،راغستان، جرم،ارګو،يمګان او بهارک په ولسواليو کې مجاهدينو ددښمن لسګونه پوستې فتحې او څو د اردو کنډکونه له منځه يووړې چې په پايله کې يې د ولسواليو تر منځ اتصالاتي لارې خلاصې، سيمي ازادې او د مجاهدينو دواک ساحه پراخه

شوه،په هلمند کې د نوزاد،موسی کلا، سنګین ، خانشین په فتوحاتو سربېره مجاهدینو نورې هم ډېرې پراخې سیمې تر واک لاندې راوستې.

د هلمند د مرکز مربوط د باباجي سیمې ته مجاهدین ننوتل او حکومتي اربکیان یې ترې وشړل،د نادعلي په مربوطاتو کې یې هم ډېر پرمختګ وکړ د ګرشک په لویه ولسوالي شورکی،قلعه ګز او حیدراباد سیمې مکملې د مجاهدینو په واک کې راغلي د میرمندو او زمبیلي تر منځ یوڅو ددښمن پوستې پاته دي نورې د اسیمې هم مکملې له دښمن څخه تصفیه شوې دغه راز د ده ادم خان لویه سیمه هم زیاته برخه د مجاهدینو په واک کې ده.

بله خوا د مارجې او کجکي ولسوالۍ هغه سیمې دي چې له مرکزي ودانیو پرته نورې ټولې سیمې یې مجاهدینو نیولې لنډه داچې د هلمند په طول او عرض کې اوس مطلق اکثریت واک د مجاهدینو لاسته ورغلی او دښمن ته یوازې په لشکرګاه، ګرمسیر او ناوه ولسوالۍ کې تر یوه حده دواک ساحه ورپاته ده.

د سږکال د پرمختیاوو یو بل مثال د روزګان ولایت دی، په ولایت کې سره له چې د ولسوالیو په مراکزو او ولایت مقام باندې د رژیم واک پاته دی مګر نورې اطرافي سیمې چې پخوا د اربکیانو ځالې وې مکملې ازادې شوي دي، په تیر کال مجاهدینو په دهراوود، چارچینو، چوره ، چنارتو، ترین کوټ او خصوصا خاص روزګان کې ډېرې زیاتې سیمي، کلي او ناوې د اربکیانو او پولیسو له شره تصفیه کړې د روزګان اکثره اربکیان د دعوت او ارشاد له لارې تسلیم شول او د خاص روزګان د اربکي کوماندان عبدالصمدغوندې چې کومو په جګړه ټینګار کاوو هغوی له سیمې تیښتې ته اړ ایستل شول په روزګان کې مفتوحه سیمو او پوستو تعداد خورا زیات دی چې د مطلب د تطویل له امله یې تفصیل نه راوړو، په روزګان کې دتیر کال یو بل مهم تغیر داوو چې د ۲۰۱۵ م کال په اوږدو کې ددې ولایت دوه دامنیې قوماندانان مطیع الله خان او ګلاب خان یو په بل پسې په لنډو ورځو کې د مجاهدینو لخوا ووژل شول .

فاریاب، سرپل، بادغیس،جوزجان او غور یوه بله هغه حوزه ده چې په تیر کال کې یې زیاتره اطرافي سیمې د مجاهدینو تر واک لاندې راغلي، په فاریاب کې د المار،چهلګزي،قیصار، پښتون کوټ، خواجه ناموسی، ګرزیوان ، غورماچ، شیرین تګاب او




ګڼو ولسواليو ډيرى ستراتيژيکي او ګڼ ميشتې سيمې لکه شاخ، قرايي او نورې تير کال مجاهدينو نيولې او ددوستمي مليشو ټغر يې ترې ټول کړى دى، به بادغيس کې د جوند، قادس او سنګ اتش له اکثره اطرافو حکومتي سلطه ټوله شوې، غور کې د دولينه شهرک، شينکوټ ولسواليو ټول هغه کلي چې پخوا په کې حکومتي مليشې وې تصفيه شوې او حکومتي کسان ډلې ډلې له مجاهدينو سره يوځاى شوي دي په سرپل کې د کوهستان په فتحه سربيره د سنګ چارک،شيرم او سوزمه قلعه ولسواليو له مربوطاتو داربکيانو ټغر ټول شوى مجاهدين يې مراکزو ته ولاړ دي. له دې پرته د هيواد په نورو ولاياتو کې هم له ډيرو سيمو چې پخوا وربانديې د حکومتي اربکيانو سلطه وه يا هلته د اردو ، پوليسو او سرحدي ځواکونو مراکز او کنډکونه و د تير کال په اوږدو کې تښتيدلي چې دغه سيمې په مجموع کې په لاندې توګه ورته اشاره کولى شو چې مکملې او يا يې هم ډيرې برخې له دښمن څخه تصفيه شوې دي لکه په پکتيکا کې اومنه، ګواشته، وازيخوا، باميان کې کهمرد ، خوست کې عليشير، غزني کې د شلګر، واغز، دهيک او مرکز مربوط ډيرې ساحې، فراه کې د بکوا، خاک سفيد،بالابلوک او ګلستان په فتحه سربيره د پشت رود ډير کلي، پکتيا کې د ډنډو پټان ډيرې سيمې، د کونړ په مروره، چپه دره او مانوګي کې ډيرې سيمې، پروان کې د شيخ علي ډير کلي،کاپيسا کې تګاب کې پوستې فتحه شوې، دايکندي کې د ګيزاب ډيرې درې او لسګونه کلي تصفيه شوي،په زابل کې د قلات په مربوطاتو سربيره په ارغنداب او شاجوى کې يو شمير پوستې فتحه شوې،هرات کې د کشک کهنه،شينډنډ ډيرې پوستې او د غوريان مرکز فتحه شوى، لوګر کې خروار مکمل او د نرخ، خوشي او ازرې به مربوطاتو کې تازه سيمې تر واک لاندې راغلي او د وردګو به جلريز کې د ميدان - باميان په لاره د اربکيانو پنځلس پوستې له منځه تللي او هلته د مضرو اربکيانو کيسه يو مخ پاى ته رسيدلې.

(مفتي ابو یاسر)

# دعوت او جهاد

## دحالاتو په تناظر کې!

دځمکې په کره کې دخلقو پیدایښت اوبیاهغوئ ته هراړخیز او دارتیا وړ مواد پیداکول ،بیاور ته دبې شمیره انبیاؤ را لیږنه ، اودکتابونو نازلیدل داجوته وي چې دلته به ژوند کول اواوسیدل په یوه ځانګړي طریقه سره وي ،چې هغه درب العزه له لوري رالیږل شوي قوانین [ شریعت ] دی او دژوند دغه موقته سلسله به دهماغه شریعت مطابقه روانه وي .

هغه خلک چې غواړي په لمړنی اووروستنی نړی کې هوسا ،سوکاله او خوشحاله ژوند وکړي نو طبعي ده چې په لمړی کې به یې دیوه ریښتوني انسان په ډول په خپل وجود ،کورنی اوټولنه کې شریعت تامین کړی وي. په بل اړخ کې به الهي قوانینوته چې داوامرو یا دنواهي په صورت کې وي پوره وفادار وي .

دعوت بې شکه چې ځمکې ته دیولک څخه دزیاتو راغلوانبیاؤ اساسي وظیفه دین ته دخلقو رابلنه وه، په قرآن کریم کې چې یواځې دجزیره العرب د۲۷\۲۵ انبیاؤ واقعات ذکرشوي

نودهغوئ بنیادي خبره له دعوت پیلیږي، بیاکورو چیرې چې خلقودین منلی نوهغوئ تل ښېرازه شوي ،اوهوساه شوي دي ،اوچیري چې دهغوئ دعوت نه دی منل شوی نوهغوئ په ټولېزه توګه له مینځ وړل شوي .

دلته :که یوې بلې خبرې ته ځیر شو نو موضوع نوره روښانه کیږي : هغه داچې په کوم امت کې چې جهاد نه وفرض شوی نورا استول شوو انبیاؤ به چې ددعوت اوبلنې له لارې خپلې ټولي هڅې پای ته ورسولي اوقومونوبه یې ورسره ونه منله نو لوی خدای ج ته به یې دهغوئ شکایت وکړ اوبیابه دهغوئ لپاره الهي عذابونه راپیل شول .

مګر په کومو امتونوکې چې جهاد ماموربه کرزول شوی هلته کلي عذابونه پورته شوي ،خوجزئي عذابونه لا هم له نورو لارو څخه راځي .

## جهـــــــاد:

مکر څرنګه چې درسالت دعوت دوه اړخه لري، لمړی خلقوته دایمان دعوت اودوهم خلقوته داسماني دین دلاربښوونو په رڼاکې دژوندچارې په وړانـدي وړل دي. دغه داوړي موخې دجهاد بنیادي اساسونه دي لمړی به خلقوته ددین بلنه ورکول کېږي که ونه منل شي ،بیا داسلام دهـدایاتو اولاربښوونو لاندي دي خپل ژوند په مخ بیایې ، اوکه دې یوه ته هم غاړه نه ښوول کېږي نوبیا څرنګه چې دمالک څخه مخامخ بغاوت اودهغه ددښمن سره یوځای کیدل دي نو رب العزه یې سزاء په همدغه جهاد سره له مینځه وړل تعین کړی.

په یوه مسلمانه ټولنه کې به دجهاد اودعوت تنوع اوتعمیل څرنګه وي ؟ په دې هکله موږ ته خپله فیصله بي خي واضحه ده : خلقوته دې وویل شي: چې دهمدغه شریعت په نفاذ کې ستاسو ټولې کټې دي، او دا خبره دومره بدیهي ده ، چې په مفهوم یې امی نه مونـدل کېږي ، نوکه څوک بیاهم تجاهل کوې اوداسلام دقانوني هدایاتوپه ځای دديموکراسی ودې ته ځانونه وفادار کڼي نودابیاهغه رذیل اوټیټ وګړې دي چې په ټولنه کې یې وجود دفساد مکروب دی چې علاج یې همدغه الهي فریضه جهاد دی .[ وقاتلوهم حتی لاتکون فتنة ویکون الدین کله لله ] .

## قرآن کریم اوجهاد :

که موږ دقرآن کریم دهدایاتو برخې ته متوجه شو نوپواځې د جهاد اړوندپه کې تر ٤٨٤ زیات ایتونه وجودلري.

په بل تعبیر دقرآن کریم د۳۳مدني سورتونو څخه یې په شلوکې د دې سترې فریضې په اړه مفصل بیان موجود دی.

چې د جهاد فرضیت، احکام، اصول ، ترغیب ، فضائل، قصص، شهادت اونور هغه ټول امور چې دجهادسره اړه لري په صراحت اوتفصیل سره ذکرشوي.

په دې سربېره په قرآن کریم کې درسول الله صلی الله علیه وسلم دپنځلس تشکیلونو اوغزواتو یادونه شوي چې درسول الله صلی الله علیه وسلم دغزواتو او سرایاو څخه دې امت ته دنمونې په ډول یادونه شوي.

## دجهاد عمومي اهداف :

مفسرین ، محدیثین اوفقهاء په دې متفق دي ،چې په قران کریم اواحادیثو کې دجهاد دمقدسې فریضې اهداف په لاندي ډول ذکرشوي دي :

اعزاز الاسلام : یعنی جهاد ددې لپاره چې د اسماني دین اعزاز قائم شي .

کسرشوکة الکفره والجبابره: یعنـي چې دمتکبروکفارو زور اوبه شي.

اعلاء کلمة الله علی الارض :یعنـي چې دلوی خدای ج فیصله اوحکم په نورو بالا وي.

اقامـة حکـم الله فـی الارض : یعنـي چـې دلوی خدای ج قـوانین دهغـه پـه ځمکـه کـې نافذشي .

لدفع الظلـم والفتنـة والفسـاد عـن البشـر: یعني چـې فسـادونه اوفتنـي لـه مینځـه لاړې شي.

إقامة العدل الذي شـرعه الله لعبـاده فـي الأرض ،یعني دعدل قیام.

**دعوت اوقرآن کریم :**

په قرآن کریم کـې تـر دوه اودرې سـوه زیات آیتونه ددعوت په اړه راغلـي دي . تـردې چې په ۸۱ مکي سورتونو کې ډیری آیتونـه همدغه دعوت ته ځانګړي شـوي دي .همـداراز په مدني سـورتونو کـې هـم ددعـوت پـه اړه ډیرآیتونه راغلي .

دبیلګـې پـه ډول : سـورة انبیـاء (۲۱) آیـه ۱۰۷و بقره (۲) آیه ۱۵۱و«آل عمـران (۳) آیـه ٦٤و اسراء (۱۷) آیه ۱۵ و مائده (۵) آیه ۱۹ و نساء (٤) آیـه ۱٦٥ و مزمـل (۷۳) آیـه ۱۵ و احـزاب (۳۳) آیه٤٥، ٤٦ و الحاقه (٦۹) آیـه ۱۰ و توبـه (۹) آیـه ۱۲۸ ............وغیرها.

**ددعوت اهداف:**

نقل الناس من الظلمـات إلـی النـور . یعنـي دجهالت له تیارو څخـه ددیـن رڼـا تـه دخلقـو راایستل .

نقلهم من رسـوم الجاهلیـة إلـی شـریعة الإسـلام . یعنـي لـه جهالـت اونـاپوهي څخـه ددیني اوعلمي نړی ډکرته دخلقو راکښل .

ومن الجور والطغیـان والعصـیان إلـی العـدل والمساواه وطاعة الـرحمن ، یعنـي دظلـم ،سـتم ،سرکشي اوګنـاهونو څخـه عـدل ،مسـاوات ،اوالهي طاعت تـه رابلل .

الخروج مـن عبـاده العبـاد إلـی عبـاده الله . دبندګانو دبندګی څخـه درب بنـدګي تـه خلق دعوت کول .

ومن ضیق الدنیا إلی سـعتها .ددنیـادتنګیو څخه داسلام وسعت اوپراخي ته دخلقو رابلل .

ومن جور الأدیان إلی عدل الإسلام .دبشري اولاسـي دینونـو څخـه الهـي دیـن تـه دخلقـو راسوق کول .

اوداسي نور.......

دعوت او جها د دحالاتو په تناظر کې

دې تیاره نړۍ ته دیولک څخه دزیاتو پیغامبرانو راتګ همدغه دوه لارې خپلې کړې ، خلکو ته به دعوت ورکول کیږي،چې دکفر، دفطري دین څخه دبغاوت ،معصیت اونورو بې دینیو لارې پریږدي ،که هغه دې ته اماده نه وي نو دوهمه لاره یې جهاد اودتوري مبارزه ده .

ننی زمانه کې مسلمانان ترټولو زیات غازیانو اوداعیانو ته ځکه اړ دي چې خلق ترپوزې پورې په نافرمانیو ،معاصي و اوبې دینیو کې ډوب دي ،ددین له اخلاقو اواعمالوڅخه بیګانه شوي اوپه پردي کلتور باندي لړل شوي .

له بل پلوه غرب داسلام اومسلمانانوسره په دښمني کې دومره وړاندي تللی چې په موږ یې له هرلوري په هرڅه کې یرغل کړی ، او له هرډول وسیلو څخه یې زموږ دځپلو کوشش کړی ، زموږ له عقائدو ،عباداتو ،اخلاقو ،معاملاتو اونورو ټولینېز ژوند څخه نیولي ترانفرادي اوشخصي هویت پوري یې په ټولوکې بدلون هڅې کړي اوکوي یې .

نواوس چې کفري نړۍ له موږ سره په دواړو[تبلیغاتي اونظامي ] محاذونو کې معرکه روانه کړي. داسلامي امت داعیان اوغازیان باید دواړه لوروکې همدغه سنګرونه وساتي ،اودغه لوروته متوجه وي .

موږ بایدیوآځې خلقوته د پنځه وقته دلمانځه په تربیې ورکولوباندي بسونه ونه کړو. موږ باید یواځې دهدیري اوجنازي داحکامو دبیان ترحدودوپاته نشو؛ بلکه خلقوته به عقیدوې، اخلاقې، مذهبې، سیاسې، اوعملې روزنه ورکړو،خلق به دالله تعالی ددین احکامو پلي کولو اودمعاصي وو څخه داجتناب کولوته راوبولو .

اولکه په سنګرکې چې موزلمیان دالله تعالی ددین دتنفیذلپاره خپل سرونه وړاندي کوي اودخپل تن په وینو دغه مبارزه په مخ وړي نودمنبر ځوانان اوداعیان مو هم باید دغه دیني مسئولیت ته همدغه سې پوره ځان وقف کړي اوددعوت منبر بایدهماغه ډول سنبال کړي لکه څرنګه چې ددې امت لمړی طبقي سمبال کړی وُ.



# په مطبوعاتو کې د سرمقالې اهمیت!

# او د سرمقاله لیکونکي اوصاف وته کتنه!

ابوظهیر

د نظري او اصولي پلوه سرمقاله [سرلیکنه] د ورځپاڼو، اوونیزو او مجلو لپاره دروح اومره ارزښت لري! سرلیکنه د ورځپاڼې یا مجلې دمعنویت مظهر ده او دېته په پام یې لیکل داسې مسؤلیت دی چې دصحافت اولیکوالی دنورو حانگو له مسؤلیتونو خورا مهم او مشکل دی، هم دا وجه ده چې دسرلیکنې دلیکلو مسؤلیت هر هغه چاته سپارل کېږي چې دهغه به نورو څخه دزیات اهلیت او کاري تجربې څښتن وي.

په عموم کې دورځپاڼو او مجلومدیران د نورو مسړلیتونو ترڅنگ دسرمقالې لیکلو مسؤلیت هم لري، یعنې دسرمقالې لیکل داداري دمشرمسؤلیت دی؛ خو نن سبا سرمقاله لیکلو دجلا فن بڼه مندلې، چې ورته خاص صلاحیتونه لرل ضروري دي، دنړۍ د لویو ورځپاڼولخوا دسرمقالې لیکلو مسؤلیت هغه چاته سپارل کېږي چې په بېلابېلو برخو کې ښه پوهه اوتجربه ولري لیکن داچې سرمقالې لیکل یوگران او دروند مسؤلیت دی دورځپاڼو او مجلو په هرو شل تنو مامورینو کې یو محدود شمېرېې ایله دسرلیکنې لیکلو اهلیت لري.

بل پر دې موضوع ډېر لږ شمېر کتابونه لیکل شوي، آن تردې چې انگریزي کې دصحافت اولیکوالی په نورو برخو [ افسانه، فیچر، لنډه کسه، ناول] په اړه لوی شمې کتابونه شته خو دسرمقالې لیکلو په برخه کې لږ شمېر کتابونه مندل کېږي ورته حال دعربي هم دی چې ورکې پ اړه یې دخاص کتابونه شتون نلري او په پښتو کې هم تراوسه په یاده موضوع کوم ځانگړی کتاب شتون نلري.

هو! په ځینو کتابونو، مقالو او لیکنو کې دسرلیکنې په باب جزي بحثونه راوړل

شوي چې هغه ټول دموضوع اهميت ، ضرورت دقت ته  ته په کتو کافي ندي.

**دسرمقالې تعريف:**

سرمقاله يا اداريه مرادف الفاظ دي، يوه معنى لري چې [د مديريا سرمحرر ليکنې ته] ويل کيږي او په مطبوعاتي اصطلاح کې هغه مضمون چې دورځپاڼې يا مجلې په سر کې راوړل شي سرمقاله بلل کيږي که د ورځپاڼې د مديرياسرمحرر په قلم ليکل شوی وي اوکه داداري دکوم بل غړي يا شخص په قلم!

پخوا دا دود وه چې په ورځپاڼو يا مجلو کې به يوه سرليکنه وه يعنې دورځپاڼې مدير به په هره نوې ګڼه کې يو اځې ديوې مسئلې په اړه خپل دريځ ښکاره کاوه؛ خو اوس داچې په هره نوې ګڼه کې دنړۍ ګڼ شمېر پيښې د خبرونو په بڼه خپريږي اوډېر ځلي د څو مهمو مسايلو په اړه داداري لخوا سپيناوي ته اړتيا وي، له دې وجې نن سبا دنړۍ په مشهورو او لويو ورځپاڼو يا مجلو کې ديوې سرمقالې په ځای څو سرمقالې ليکل کيږي.

**دسرليکنې اهميت:**

**دورځپاڼو او مجلو دوه مهمې موخې:**

دمعلوماتو اطلاعاتو اوخبرونو خپرول په خبرونو تبصرې ليکل، يعنې د تودو اوګرمو پيښو په اړه داداري د دريځ په ښکاره کولو دخلکو ذهنيتونه جوړول.

دې دواړو بنسټيزو موخوته په پام دورځپاڼې مخونه په درې برخو ويشل کيږي ۱- خبري مخونه۲- دليکنو يا کالم ليکلو مخونه ۳- ځانګړي مخونه.

په خبري مخ پاڼو کې هغه اطلاعات او معلومات وړاندي کيږي کوم چې دخبر په زمره کې راځي؛ دليکنو اوکالم ليکلو مخ پاڼو کې پر مهمو خبرونواو ګرمو موضوعاتو تبصرې ليکل کيږي او په ځانګړو پاڼو کې يوه يوه ورځ دټولنې دبېلابېلو قشرونو لپاره ځانګړي مضامين وړاندي کيږي.

دسرليکنو ،سريزو او سرمقالو نه علاوه معلوماتي، څېړنيز، تاريخي مضامين يا کالمونه ددليکنو او کالم ليکلو په مخ پاڼو خپريږي

**د ښه سرليکونکي څو ضروري اوصاف:**

دسرمقالې يا سرليکنې ( سرليکونکی) دورځپاڼې يا مجلې داداري دننه دستر اهميت او وقار څخه برخمن وي،داداري په کالمونوکې دهغه رايه دومره اهميت لري چې دورځپاڼې يا مجلې رايه ګڼل کيږي! او دهم هغه دليکنو پر اساس دکالمونو او

لیکنـو برخـه دورځپـانې روح ګڼـل کیـږي دســرمقاله لیکــونکي اندونــه، مشــورې اوتبصـرې دیـو هېـواد پـه سیاسـي چـارو او دژوند پـه نـورو برخـو خـورا ژور اغیـز لـري، سرلیکنه دعامه غوښتنو اوهیلو دترجمانۍ کولـو ترڅنـګ خپلـو لوسـتونکو تـه دفکـر اونظر رڼا هم ورکوي یعنې دهغـه دلیکنـې څخه لوستونکي درهنمایې توقـع لـري ددې لپـاره دیـو ښـه سـرمقاله لیکـونکي لپـاره لاندې څو اوصاف ضروري دي:

**دژبې او وینا رواني:**

وړاندې زمانه کې د مدیر ترټولـو لـوی امتیازي وصف بـه دا و چې دوینا آهنګ به یې لـوړ، رابښکونکی او دلیکلـو روانـي بـه یې لوسـتونکي دځـان سره وړل؛ددې لپـاره بـه یـو سـرمقاله لیکـونکی دیتـه اړ و چـې دخپل بریالیتوب لپاره به یې په ژبه مکمـل قدرت درلود!

او نن سبا پـه سـرمقاله کـې مسجع او مقفی عبارتونه راوړول څـوک نـه خوښـوي ددې لپاره تري ډډه کیږي او په ورتـه توګـه دلوســتونکو د احساســاتو او جـذباتو سـره دلوبیدو لپاره دالفاظو درنګینـی جـوهر تـه ډېر پام نه کیږي؛خوبیا هم دمدللو انـدونو د مؤثر اظهـار لپـاره پـه ژبـه او وینـا عبـور حتمي او ضروري دی.

که څه هم اوسنی سرمقالې ادبي ښکلا او سینګار ډېرنلري لیکن دسرمقالې دمؤثریـت او معقولیـت لپـاره دژبـې روانـي! دالفـاظو پریمـانې! پرځـای سـم اسـتعمال اوجوړښت خورا ضرور دی، پـه مـؤثره توګـه دخپـل فکـر او دریـځ وړانـدې کولـو لپـاره حتمي ده چې سرمقاله لیکونکی به دلیکنې په ژبه مکمل عبور لـري او دخپـل [مـا فـي الضمیر] دښه [اظهار] هنر به پیژنـي او پـه پوره روانه او پسته ژبه خپل دریځ ښکاره کولی شي.

**۲ــ منطقي ذهن:**

پخوا تل سرمقاله لیکونکو بـه منطـق او استدلال ارزښت نه ورکـاوه، خـو نـن سبا هـره خبـره دحقـایقو او دلایلـو پـه رڼـا کـې ارزول کیږي اوسني لوستونکي پـه جـذباتو کـې دلاهـو کیـدو پرځـای پیښـه دعقـل او دلیل په معیارونو تلـي؛ دعمـل لپـاره دننـي لوستونکي اماده کولو لپاره په لیکنه کـې د دلیـل او منطـق دلیکـوالی پـه سـلیقه ځایول حتمي دي له شک پرتـه یـوه مـؤثره لیکنـه نـن هـم دلوسـتونکو احساسـات پـه غورځنګ راوستلی شي اوپـه مؤقتـه توګـه یې له ځان سرهمل کولی شي خـو ددې ترڅنګ هرې مسئلې ته دحقایقو په رڼا کې کتـل او دعقـل او شـعور پـه مرسـته یـې

ارزول دنني انسان ځانګړتيا ګڼل کيږي ددې لپاره چې سر ليکنه په زړه پوري او پرلوستونکو تاثير ولري ضروري ده چې سرمقاله ليکونکی دمنطقي ذهن څښتن ويچې دسرمقالې دمؤثريت لپاره هغه دخپل دريځ نه ددفاع لپاره په سليقوي بڼه د معقول منطق او قوي استدلال وړاندې کولو صلاحيت په ځان کې ولري، څو که وروسته يو لوستونکی دمخالف لوري اندونه يا متضاد افکار هم ولولي بيا هم دهغه د ذهن څخه دسرمقالې اثرزايل نکړای شي...

**۳ـ دغور اوفکرکولو صلاحيت:**

دسرمقاله ليکونکي مسؤليت يوازې دحالاتو او واقعاتو تر تشريحولواو د مختلفو مسايلو په برخه کې لوستونکوته دفکرتر بلنې محدود ندی، دژوند داسې ګڼ موړونه شته چې په اړه يې هغه بايد د خپلو لوستونکو فکري رهنمايې وکړي،خو دسمې او رښتينې رهنمايې فريضه هغه مهال سرته رسولی شي چې کله هغه پخپله دلوړ فکري صلاحيت څخه برخمن وي او د بينا سترګو ترڅنګ دداسې حساس زړه او روښانه ضمير خاوند ويچې دحا لاتو او واقعاتو د ظاهري محرکاتو پر پيژندلو بسيا ونکړي بلکې دهغوتل ته ننوزي؛اوهلته دښه اوبد ترمنځ دتميز کرښې معلومې کړي! په پټو سترګو دځينو اندونو منل ، يا په سطحي ليد بسيا کول دخپلې رايې يا فکر د نه داظهار صلاحيت نه درلودل دسرمقاله ليکونکي ترټولو لويه نيمګړتيا ده.

**۴ـ اعتدال[منځلاريتوب]:**

په مختلفو موضوعاتو اوستونزو دتبصرې ليکلو پرمهال سرمقاله ليکونکی د منصف قاضي ته ورته او د درېيمګړي حيثيت لري او بل داچې دهغه رايه يوازې ديو فرد رايه نه بلکې ديوې ادارې يا ټولو رايه ګڼل کيږي خامخاده چې سرمقاله ليکونکی به د توند په ځای دنرم مزاج څښتن وي که داسې نه و نو دخلکو اولوستونکو په سمه رهنمايې کې به ناکام وي ډېر ځلي دتوند مزاج په وجه داسې ستونزې زيږې چې دهغو حل بيا تقريباً ناشونی وي.

او ډېر کرته دا هم وي چې يو سرمقاله ليکونکی ديوې معاملې يا پيښې دنوعيت په نه پيژندلو ډېره تونده او تېزه سرمقاله وليکي خو له چاپ څخه وروسته ښکاره شي چې پيښه يا معامله حقيقت نلري يا لږ ترلږه په دې نه ارزيده چې وربانديې دومره تېزه اوتونده سرمقاله

ليكل شوې واى ددغه ډول سرمقالو ليكلو له وجې نه يواځې سرمقالې برخې ته زيان و اوړي بلکې له امله يې دهغه ورځپانې يا مجلې ټول وزن او اهميت ته صدمه رسي.

سرمقاله ليکونکى زياتره وخت له څو خواوو نه دفشار ښكار وي كه ورځپانه يا مجله [ دكومې دلې ياتنظيم اړوند وي ] په دې صورت كې د پاليسۍ رعايتولو ترڅنګ ضروري ده چې دسرمقالې دلوړو ارزښتونو او اصولو څخه هم سرغړونه ونکړاى شي بل كله نه كله سرمقاله ليكونكي دمختلفو ډلو اوټولنو لخوا هم دفشار سره مخ كيداى شي مثلاً:دمزدورانو او آجرانو ترمنځ دنزاع په صورت كې دمزدورانو يا دهغوى دټولنو له لوري ترې غوښتنه كيږي چې سرمقاله ليكونكي دي ددوى دريځ ملاتړ وكړي! او له بل طرف نه آجران بيا دخپل دريځ دملاتړ لپاره دفشار اچولو نه كار اخلي او په هغه صورت كې چې ورځپانې ته د اجر لخوا سوداګريزاعلانونه ليږل كيږي ددغه ډول فشار نور مؤثرګرځي خو سرمقاله ليكونكى به ددې ستونزې دحل لپاره داسې صورت راباسي چې نه يومخ اصول تر پښو لاندې پايمال كړي اونه داړوندو خلكو احساسات راوپاروي دداسې حالت نه دوتلو لپاره دسرمقاله ليكونكي قلمكار متوازن ذهنيت او معتدل شخصيت ډېره ګټه لري.

**۵ـ دپريكړه كولو ځواك:**

سرمقاله ليكونكى به منصف قاضي وي اوهم بايد د سهي پريكړې كولو لپاره د مكمل ځواک صلاحيت و لري، په ورته توګه دسرمقاله ليكونكي دتميز كولو ځواک داړونده اداري پر معنويت او اهميت ژور اغيز لري ددې لپاره ضروري ده چې هغه دهرې ورځې پيښې دتقابلې اهميت سره سمې فيصله كړي چې كومه پيښه دسرمقالې لپاره اوكومه دلنډې تبصرې لپاره غوره ده؟ ددې پرته په سرمقاله او تبصره كې توازن منځته نشي راتلاى ددې كار په مطالعه كې خورا ليوالتيا او دموضوع په انتخاب ! او په باره كې دخاص دريځ ښودو لپاره دسمې او سملاسي پريكړې كولو صلاحيت ضروري دى.

نوربيا...

# په جهاد کې د عالم

## لیکوال او شاعر رغنده رول

سید سعید

د ټولني په اصلاح په تیره جهاد کي د عالم، لیکوال او شاعر پر رغنده رول سترګي نشي پټیدلای، دوی په کتاب، ژبه او قلم داسي ستر نقش لوبولی چي ټولنه به یې تر ابده ددې لوی چوپړ پوره ورې وي.

لکه څنګه چي د مورچل مجاهد د ټوپک په شپیلۍ دخاوري،ارزښتونو اومنافعو څخه ساتنه کوي، همدا راز عالم، لیکوال او شاعر په قلم او ژبه دمسلمان ملت زړه او فکر له عقیدوي انحراف، فکري ګډوډۍ او فرهنګي یرغل څخه ژغوري.

څلور لسیزي وړاندي زموږ په ټولنه کي عالم تقریباپه محراب کي منزوي شوی و، له دنیا او آن د دین له سیاسي اواجتماعي ډګرونو سره نابلده غوندي و،البته د هیرولو نه ده هماغه مهال هم علماء کرام په انفرادي توګه د ټولني دسمون او خیر خواهۍ لپاره په خدمت لګیا وو خو د کمونیزم دمنفوري ایډیالوژۍ د ورود او د ثور له کودتا وروسته په اجتماعي ډول د علماوو خپل مسؤلیت ته پاملرنه زیاته شوه، د شوري ضد جهاد کي یې رغنده رول اداء کړ او د شراو فساد او امریکایې اشغال پر ضد مبارزه کي علماوو او قلموالونه ستړي کیدونکي هلي ځلي ترسره کړې.

د شر او فساد او دامریکایې یرغل په مهال د عالم، لیکوال او شاعر دهڅو نتیجه وه چي ولس یې په دې وپوهاوه چي خاوره، نوامیس او ارزښتونه یې یرغمل شوي او باید دخپلو حقه حقونو د ترلاسه کولو لپاره پاڅون وکړي او یا حد اقل د سرسپارلو مجاهدینو تر شاه ودریږي.

د شوري ضد جهاد، شر او فساد په وړاندي پاڅون او د امریکایې یرغل پرضد روانه مبارزه کي علماوو، لیکوالو او شاعرانو نه یوازي داچي خلګ جهاد ته دعوت کړي او هڅولي، بلکي خپله هم په سنګرونو کي

جنګیدلي،ژوبل شوي، بندي شوي او د شهادت عالي مقام ته رسیدلي دي.

له نیکه مرغه علماء اوس د پخوا په نسبت ترډیره د ګوښي توب له حالته راوتلي او خپله مبارزه یې مختلفو ډګرونو ته شامله کړې ده، چې دا د راتلونکي لپاره ښه زیری دی.

ددې لپاره چې امت مو د لویدیځ له بیلابیلوپرغلونو او نیرنګونو څخه ژغورلی او اګاه کړي وي، داسلام د مقدس دین څخه د دفاع او خپراوي په لاره کې مو اغیزناک ګامونه اوچت کړي وي، اړینه ده چې په خپل تعلیمي نصاب، شخصي او ټولنیز ژوند دود کې څه تغیرات ومنو مثلا:

هر مسلمان په تیره عالم او قلموال باید زموږ د ټولني پر ځینوناوړه دودونو لکه خپل منځي رقابت،حسد او ځانځانۍ ښامار پر سر باندي پښه کښیږدي، چې له یوې خوا دنیوي سوکالي او خوشحالي راته میسره شي او له بلي خوا له اخروي عذاب څخه نجات ومومو.

لیکوال او علماء د قراني ارشاد (ادع الی سبیل ربک باالحکمة والموعظة الحسنة الایه ) په رڼا کي داسي وعظ اودعوت باید وکړي چې دښمن او ددښمن سره همکار خلګ راجلب کړي، ځکه زموږ داعیه برحقه ده، پر زړونو او فکرونو باندي ژر مثبت اغیز کولای شي.

طالب العلمان او زده کوونکي باید وپوهول شي چي معاصر طالب د دښمن له ډیرو ننګونو سره مخ دی نو لازما باید له دښمن سره په مختلفو ډګرونو کي د مقاومت مهارتونه زده کړي.

د وخت ارزښتناکه متاع په ټوکو ټکالو، بوختونکو لوبو او بې ګټو مباحثو مصرف نه کړي.ځکه همدا وخت دی چي ددښمن سره مقاومت پکي کیدای شي، علم او مهارتونه پکي ترلاسه کیدای شي، د مور او پلار او ټولني خدمت پکي کیدای شي،جهاد، عبادت،تعلیم، تعلم، تجارت، صنعت او مختلف د خیر اوښیګني کارونه پکي ترسره کیدای شي.نو دوخت ستره شتمني مو باید وړیا له لاسه ونه وزي.

په د ې موخه چي د نوي نسل تعلیم یافته قشر( علماء، شاعران او لیکوال) مو دین او وطن ته لا ښه خدمت وکړي، مناسبه ده چي دوخت د غوښتونو سره سم تعلیمي نصاب تصویب او تدوین شي.

د ډیموکراسۍ، ګلوبلایزیشن،ازاد بازار، خرابۍ په ګوته شي.

داسلام دسیاسي نظام ښیګني،په ټولنه کي يې رغنيز نقش، انفرادي او اجتماعي خونديتوب اوله پخوانيو او معاصرو وضعي قوانينو او نظامونو څخه هر اړخيزي ښيګني يې د عصر پـه ژبه او اسلوب توضيح او تشريح شي.

د سوسياليزم ا وكپيټاليزم افراط او تفريط او داسلام د اقتصادي نظام ا ومعاصري اسلامي بينكدارۍ اعتدال، لاسته راوړني او دفطرت سره نژديوالى په تحريري او تقريري بڼه وړاندي شي.

ليكوال، علماء او شاعران ددې لپاره چي پـه راتلونكي كي پـه اجتماعي او جهادي ډګرونو كي لا ښه رغنده رول ولوبوي، په خپل ابتكاراو هڅو سره بايدد هيواد او هجرت د د يار په بيلابيلو سيمو كي دهماغه ځاى د كلتور او اراضي سره مناسب علمي او تنويري كنفرانسونه، سيمينارونه او وركشافونه داير كړي، ګټه بـه يې داوي چي ځوانان د غرب د فرهنګي، فكري او رواني يرغل څخه د ځان او ټولني د دفاع جوګه شي او د فرصت په صورت كي د د ښمن پر يادوو شوو تخريبي بنسټونو، هڅو او چلونو منطقي او علمي ګوزارونه وكړي.

## په چايو اودس کول؟

پوښتنه :په چايو اودس كول څه حكم لري ؟ كه په دې اړه معلومات راكړئ ، مهرباني به مو وي.

ځواب :په مذكوره صورت كې اودس جواز نه لري ، ځكه دچايوخوند رنګ بوى له اوبو څخه جلا اوهمدارنګه داوبو نوم هم ورنه زائل شوى ، ځكه چايوته اوبه نه ويل كيږي.

۱ - لمافى نورالايضاح : ص / ۱۰ ولا بماء زال طبعه بالطبخ أو بغلبة غيره عليه

۲ - لمافى الهدايه :فصل فى الغسل : ۱ / ۱۸ فإن تغير بالطبخ بعدما خلط به غيره لا يجوز التوضي به لأنه لم يبق في معنى المنزل من السماء إذ النار غيرته إلا إذا طبخ فيه ما يقصد به المبالغة في النظافة كالأشنان ونحوه

۳ - لمافى العنايه شرح الهدايه :باب المآء الذى يجوز به الوضوء ومالايجوز : ۱ / ۹۵ وَقَوْلُهُ : ( بَعْدَمَا خُلِطَ بِهِ غَيْرُهُ ) إنمَّا قُيِّدَبِهِ ؛ لِأَنَّ الْمَاءَ إذَا طُبِخَ وَحْدَهُ وَتَغَيَّرَ جَازَ الْوُضُوءُ بِهِ.

# آیا نني مسلمان ته!

# رښتیا تقلید واجب دی ؟

مفتي شاهد (حقاني)

دنن ورځ مسلمان ته دتقلید اړتیا اودوجوب او جواز مسئله څیړل ،رښتیا هم چې د ډیرې وسیعې مطالعې او علمي تبحر په مټ شوني کیدای شي ،خوداچې دتحقیق میدان ډیر وسیع او علماوو ته ددې مجال شته، چې دخپلو راټولوشویو معلوماتو په رڼا کې یې دافادیت لپاره وڅیړې، نو موځکه پدې لنډه تنګه مقاله کې پرې څو کرښې تورې او خپل خواره واره معلومات مو سره پیوندکړل !

ددې نه مخکې چې دتقلید په حکم او اهمیت رڼا واچووغوره داده چې یوځل یې معنی وپیژنو!

**دتقلیدمعنی** :دبرصغیر مشهورفقیه عالم، مفتي رشید احمدرح په (السبک الفرید لسلک التقلید)کې داسې کړي :حقیقت کې تقلید دداسې یوشئ نوم دی ،چې دین کې دخپل کوم بزرګ او پیشواقول او یا فعل پرده دخپل حسن ظن او ښه باور په بنسټ قبول کړي اوپردي عمل وکړي، چې دا دقرآن او سنت موافق دی،پردې عمل او ددې دقول قبلول ،دده څخه ددلیل غوښتلو سره ونه تړي،مګرکه دا دلیل اوس یا وروسته معلوم شي، له تقلید سره منافي ندی ،یعنې تقلید کې ددلیل مطالبه شامله نده او علم بالدلیل ورسره منافات نلري ،کشاف په( اصطلاحات الفنون )کې تقلید داسې تعریف کړی :

التقلید عبارة عن اتباع الانسان غیره فیما یقول او یفعل معتقداً للحقیة فیه من غیر نظر وتأمل فی الدلیل کأن هذا المتبع جعل قول الغیر او فعله قلادة فی عنقه من غیرمطالبة دلیل ،علامه ابن ملک شرح منار مصری ص۲۵۲کې فرمایي :وهو(ای التقلید)عبارة عن اتباعه فی قوله اوفعله معتقدا للحقیة من غیر تأمل فی الدلیل ،او په (نامي شرح حسامي مطبوع مجتبایي ص۱۹۰کې داسې دي: چې (التقلید

اتباع الغيرعلى ظن انه محق بلا نظر فى الدليل (احسن الفتاوى ج١ ص٤٠٨).

دتقليد ددې فوق الذكرو تعريفاتو څخه په ډاگه ښکاري، چې کوم مقلد چې دکوم امام تقليد کوي، نه پکې ددليل دراوړلو ممانعت شته او نه ددليل په ذکرکولو مقلد له تقليده وځي اوهمداسې پر کوم سلف عالم او غښتلي امام پسي تقليد دحسن ظن پر بنياد کيږي او ښه سوژه به دعلماووپه حق کې ضرور مسلمان لري ،چې دې سره دځينو خلکو هغه خبرې هم ځواب شوي ،چې اهانةً دپوښتنې او مناقشې پر وخت دشرعي معنى پر ځای تقليد په لغوي معنى سره تعريفوي او دقلادې يا پړي اچولوپه معنى يې آن په شرعي مسايلو کې هم کاروي ،چې دا درسته خبره نده او نه په شرعي لحاظ دې معنى ته څوک تقليد وايې ،دايې لغوي معنى ده او په ديني مسايلو او مباحثو کې متروک وي .

امام قرطبي رح تقليد داسې کړي : قال القرطبيُّ : التقليد عند العلماء : " حقيقةُ قَبُولِ قَوْلٍ بلا حُجَّةٍ " ؛ وعلى هذا فمن قبل قول النبيِّ ( صلى الله عليه وسلم ) من غير نظرٍ في معجزته ، يكون مقلِّداً ، وأمَّا من نظر فيها ، فلا يكون مقلِّداً /اللباب فى علوم الكتاب ج٣ص١٥٩).يعنې دبل چا قول له دليل پرته منلو ته علماء تقليد وايي،چې لغوي او اصطلاحي معناگانې مختصرا داسې دي:

دتقليد لغوي معنى : التَّقْلِيدُ لُغَةً : مَصْدَرُ قَلَّدَ ، أَيْ جَعَلَ الشَّيْءَ فِي عُنُقِ غَيْرِهِ مَعَ الإِحَاطَةِ بِهِ/ روضة الناظر لابن قدامة ٢ / ٤٤٩ ط ثانية ، الرياض مكتبة المعارف ١٤٠٤ هـ.) يعنې تقليد دلغت له حيثه دقلد مصدر دی ،او داکلمه دلغت په لحاظ د چا په غاړه کې داسې غاړکۍ اچولو ته وايې، چې په ټوله غاړه يې احاطه کړي وي ،لکه چې داسې يو څوک ووايې چې :قَلَّدْتُ الرَّجُلَ السَّيْفَ فَتَقَلَّدَهُ : إِذَا جَعَلَ حَمَائِلَهُ فِي عُنُقِهِ...يعنې يو سړي ته مې غاړه کې توره داسې ورواچوله چې دا حمايل يې ټول په غاړه شول . په (لسان العرب ، اومختار الصحاح)کې وايې : وَفِي التَّهْذِيبِ : تَقْلِيدُ الْبَدَنَةِ أَنْ يُجْعَلَ فِي عُنُقِهَا عُرْوَةُ مَزَادَةٍ ، أَوْ حِلَقُ نَعْلٍ ، فَيُعْلَمُ أَنَّهَا هَدْيٌ . وَقَلَّدَ فُلاَنًا الأَْمْرَ إِيَّاهُ . وَمِنْهُ تَقْلِيدُ الْوُلاَةِ الأَْعْمَال)ژ:او په التهذيب کې ليکي چې : دبدنې تقليد دادی ،چې غاړه کې يې رسۍ واچوي ،يا پڼه ورته ترغاړې کړي ،نوددې نه به معلوميږي، چې دابدنه دکعبې هديه ده ؛ ياد تقليد معنى داده، چې فلاني ته يې کومه دنده وروسپارله او همداسې واليانواومشرانو ته وظايفو سپارلو ته هم دتقليد کلمه کارول کيږي.

الموسوعة الفقهية کې ليکي چې :تقليد په شريعت مطهره کې په څلورو معنى گانو استعماليږي ، لومړۍ معنى يې: والي او يا قاضي ته دوظيفې سپارل ؛ دويمه معنى :

هداياووته غاړه کې کومه نښه اچول،ترڅو چې نورو اموالو سره یې فرق وشي ؛دریمه معنی :تعویذونه وغیره غاړه کې اچول ؛څلورمه معنی اوهغه معنی چې زمونږ دلته څیړنه کې هم مراد ده هغه : التَّقْلِيدُ فِي الدِّينِ وَهُوَ الأَخْذُ فِيهِ بِقَوْلِ الْغَيْرِ مَعَ عَدَمِ مَعْرِفَةِ دَلِيلِهِ . أَوْ هُوَ الْعَمَلُ بِقَوْلِ الْغَيْرِ مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ /روضة الناظر بتعليق الشيخ عبد القادر بن بدران ١٤٠٤هـ٢ / ٤٥٠ القاهرة المطبعة السلفية ، وإرشاد الفحول للشوكاني ص ٢٦٥ . القاهرة . مطبعة مصطفى الحلبي ١٣٥٦ هـ.)ژ : تقلید په دین کې دې ته ویل کیږي، چې پرته ددلیل غوښتلو څخه دبل چا په قول باور وکړي او ویې مني ،یا داچې تقلید دې ته وایې، چې دبل کوم عالم په قول له حجت څخه په غیر عمل وکړي .

په (شرح مسلم الثبوت ٢ / ٤٠٠ . القاهرة ، مطبعة بولاق ، ١٣٢٢هـ ، المستصفى مطبوع مع مسلم الثبوت ٢ / ٣٨٧ . الطبعة المذكورة ، او روضة الناظر ٢ / ٤٥٠ .)کې دتقلید په هکله داسې لیکي چې :تقلید له حجت پرته دبل چا دقول منل دي، لکه څنګه چې یو عام شخص د مجتهد قول قبول کړي ،خوداچې څوک پخپله درسول الله صلی الله علیه وسلم قول ته رجوع وکړي ،نو دې ته تقلید نه وایې ،همداسې که څوک اجماع امت ته مراجعه وکړي، نو هم ورته تقلید نشي ویل کیدای ،ځکه دې کې رجوع ما هو الحجت ته فی نفسه راغله او پخپله اصل ته پکې صیرورت وشو، نو دې ته تقلید نه وایې ،تقلید هغه دی چې دکوم منل شوي امام یا مجتهد قول باندې دده څخه ددلیل له غوښتلو پرته عمل وکړي او ویې ومني !

## عقایدو او ددین په ضروري مسایلو کې دتقلید حکم :

فقهاء وایې، چې ددین په ضروري مسایلو کې لکه لمونځ ،روژه ،زکات ،حج وغیره ...کې تقلید ضرور ندی ،بلکې دا به پخپله مباشرةً له شارع څخه اخلي ،همداسې دجمهورو اصولیینوپه عقیده عقایدو کې دچا تقلید ندی جایز،لکه دالله تعالی په وحدانیت ،وجود اودعبادت په افراد کې یې ،همداسې دالله جل جلاله پیغمبر صلی الله علیه وسلم دصدق په معرفت کې ،چې دوئ وایې چې دې ټولو کې به تفکر ،تدبرکوي او خپل قلبي طمانیت به پکې دعلم په وسیله خپلوي ،دوئ ددې خبرې داثبات لپاره دادلایل راوړي : الله تعالی فرمایې { بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِمْ مُهْتَدُونَ } (سورة الزخرف / ٢٢ .) ، وَلَمَّا نَزَلَ قَوْله تَعَالَى : { إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ وَاخْتِلافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لآيَاتٍ لأُولِي الأَلْبَابِ } (سورة آل عمران / ١٩٠) قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " لَقَدْ نَزَلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ آيَةٌ . وَيْلٌ لِمَنْ قَرَأَهَا وَلَمْ يَتَفَكَّرْ فِيهَا " (أخرجه ابن حبان).

ځيني فقهاء وايي چې عقايدو کې هم تقليد جايز دی او دوئ ددې مخکينی نظرېي انتساب ظاهريه وو ته کړی !

البته جمهور اصوليين وايې :چې دعقايدو غوندې دعدم تقليد حکم هغه مسايل هم اخلي چې ددين څخه بالضرورة معلومېږي او ارکان خمسه پکې شامليږي ، لکه دې عبارت کې چې وايي :

ثمّ عند الجمهور يلحق بالعقائد في هذا الأمر كلّ ما علم من الدّين بالضّرورة ، فلا تقليد فيه ، لأنّ العلم به يحصل بالتّواتر والإجماع ، ومن ذلك الأخذ بأركان الإسلام الخمسة (الموسوعةالفقهية).

همداسې نامتو حنفی عالم علامه عبدالغنی نابلسی رح فرمايي : هغه متفق عليها مسئله چې بالضرورة له دين څخه معلومه وي ، لکه دلمانځه ، روژې ،زکات او حج فرضيت ياددې په شان نور ،او دزنا ،لواطت،شرابو،قتل ،غلا ،غصب او يا دداسې نوروشيانو حرمت ، نودې کې دځلورګونو امامانوتقليدته اړتيا نشته ،البته دتقليد ضرورت هلته پيښيږي ،چې هغې کې اختلاف وي او مسئله مختلف فيها وي .( خلاصة التحقيق فی حکم التقليدوالتلفيق ص۴).

همداسې (علامه خطيب بغدادی رح ) ليکلي :او شرعي احکام دوه قسمه دي ،يوهغه چې په هغې کې تقليد ندی جايز،او بداهة له دين څخه معلوم وي، لکه لمونځ ،روژه ،زکات ،حج ،دزنا او شرابو حرمت ،او دويم قسم هغه دی ،چې هغه له استدلال ،فکر او نظر نه په غير نشي ترلاسه کيدای، لکه عبادات ، معاملات ، ودونه ........پدې کې تقليد صحيح دی ،ځکه دالله تعالی ارشاد دی، چې که تاسونه پوهيدئ، نو له اهل ذکرو او علماوو څخه پوښتنه وکړئ،او بل داچې ،که مونږتقليد څخه خلک منع کړو، نو ددې مطلب به داوي، چې ټول خلک دې دعلم دين زده کړې پسي شروع وکړي، نو دې سره به دخلکو دژوند نور مصالح پاتي او دخلکو دژوند ټول ضروريات به خراب شي او دفصلونو او حيواناتو هلاکت به رامنځته شي، نو ځکه ددې موانعو په وجه داسې کوم حکم نشي ورکول کيدای (الفقيه والمتفقه للخطيب البغدادی ج۲ص٦٧/٦٨ طبع دارالافتاء سعودی رياض).

په( الموسوعة الفقهية) کې ليکي : حق خبره داده چې په عقايدو او ددين په اساسي مسايلو کې هغه چې بالضرورة دين څخه معلومېږي ، دکوم عالم تقليد نشته، بلکې که په اجمالي صفت هم وي ،نو دصاحب الشرع نه به يې اقتناع په تام ثبوت سره پخپله کوي .،خو په فرعي مسايلو کې هغه چې له تفصيلي دلايلو نه په نظر عميق سره معلوميدای شي ،عوام په استنباط او استخراج مکلف کول يو شاقه کار دی ،کوم چې دژوند له استقامت سره اړخ نه لګوي ،داځکه که هر څوک پدې مکلف شي ،چې

له دلايلو څخه دمسايلو استنباط وکړي ،نو دژوند مصالح او ګردي چارې به ځنډنۍ او معطلې شي ،که دامت دسلفو ژوند مطالعه کړو ،او دوئ خيرالقرون دي ،هغه چې رسول الله صلى الله يې په باب شهادت ورکړی و،نو وبه کتل شي، چې دوئ ټول مجتهدين نه وو،بلکې دوئ کې مجتهدين ډير کم کسان وو،او دوئ ټولو د(۱۳) اشخاصو څخه زيات نه وو،سربيره پردې چې داجتهاد شرطونه ډير سخت او ضق دي او هرچاکې نشي موندل کيدای !

## په فروعي مسايلوکې دتقليد حکم:

په فروعي مسايلوکې عام اصوليين علماء اودنامتومفسر امام قرطبي رح په څير نبذه او کره مفسرين دعامو مسلمانانو لپاره ( هاغه څوک چې داجتهاد شروط او قوت پکې نه وي )دتقليد پروجوب حکم کوي ،خو يو کم شمير علماء په دې باب مخالف نظر لري، چې تفصيل به يې لاندې بحث کې ذکر شي ،په( تفسير اللباب فى علوم الكتاب )کې يې دتقليد دوجوب په باب د(امام قرطبي رح) قول داسې رانقل کړی :

.... في وجوب التَّقليد على العامِّي:

قال القرطبيُّ - رضي الله عنه - : فرض العامِّيِّ الذي لا يستقلُّ باستنباط الأحكام من أصولها ، لعدم أهليته فيما لا يعلمه من أمر دينه ، ويحتاج إليه - أن يقصد أعلم من في زمانه ببلده ؛ فيسأله عن نازلته ، فيتمثَّل فيها فتواه ؛ لقوله تعالى : ( فَاسْأَلُواْ أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنْتُم لاَ تَعْلَمُونَ ( [ النحل : ٤٣ ] وعليه الاجتهاد في أعلم أهل زمانه بالبحث عنه ؛ حتى يتفق أكثر الناس عليه ، وعلى العالم أيضاً أن يقلِّد عالماً مثله في نازلةٍ خفي عليه وجه الدليل فيها .(تفسير اللباب لابن عادل ابوحفص الحنبلي ج١ص٤٩٧)

لنډه ترجمه :امام قرطبي رح فرمايي چې :دامي (عامي )شخص لپاره چې داجتهاد اهليت او علمي قوت پکې نوي ،او نه پکې داستنباط صلاحيت وي ،فرض دادي چې خپله سيمه کې دخپل وخت يو ښه عالم پيدا کړي او دنويوپيښو شويو مسايلو او حوادثو په باب ترې پوښتنه يا استفتاء وکړي ،او دسورت (النحل د۴۳نمبرآيت )په رڼاکې ترې فتوی واخلي او په هغې عمل وکړي ، دامستفتي بايد ديوه ښه عالم په لټه کې وي، تردې پورې چې زيات خلک ورسره پدې کې متفق شي ،همداسې پر يوه عالم هم دالازمي ده، چې په هغه مسئله کې چې ده ته پرې ددليل وجه نده معلومه، دبل کوم عالم او مفتي څخه پوښتنه وکړي .

په (روضة الناظر ٢ / ٤٥١ ، ٤٥٢ ، إعلام الموقعين ٤ / ١٨٧ ـ ٢٠١ ، او إرشاد الفحول ص ٢٦٦ .) کې ليکي ترجمه : جمهور اصوليين علماء وايي: چې تقليد جايز دی ،ځکه مجتهد به يا مصيب وي، يا به مخطئ وي ،چې پدې صورت

کې هم ورته ثواب ورکول کیږي او نه ګناهګار یږي ،بلکې په عامي شخص (غیر عالم )باندې تقلید واجب دی ،داځکه چې دا امي شخص هم دشرعي احکامو په تعمیل باندې مکلف دی ،اوده ته دلایل نه وي څرګند ،پرده باندې ددلایلو دخفاء تیاره خپره وي ،داشخص نظر او اجتهاد ته محتاج دی ،خو که عوام هم په اجتهادباندې مکلف شي ،نودې سره به دنسل او کښت انقطاع راشي، دکسبونو اوصنایعو امو راتو ځنډ وځنډ به رامنځته شي، چې ټولنه به دسختو مشکلاتو اوستونزو سره مخ شي اوبل داچې ځینوصحابه کرامو رضی الله عنهم به هم ځینونورو ته فتواوې ورکولې اوهمداسې به یې نوروخلکوته فتوې ورکوله، خودوئ ته یې داجتهاد دمرتبې ترلاسه کولو باندې حکم نه کاوه .

الله جل جلاله هم له علماوو نه دمسایلو په پوښتلو کې امر کړی دی، لکه چې په سورت النحل / ٤٣ آیت کې فرمایي : { فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لا تَعْلَمُونَ }نور هم داسې دلایل شته، چې دتقلید جواز اوعامی یا امي ته ترې دتقلید وجوب ثابتیږي ،چې همدا نظر دزیاتو علماوو غښتلي رأیه ده، ځکه که عوام هم دکوم داسې منل شوي عالم تقلید باندې وجوباً مکلف نشي، نو اسلامي جامعه به دپیچلو ستونزو سره مخ شي او خلک به دمسایلو په حل کې لا لهانده او سرګردانه ګرځي راګرځي ،نه به دبي علمی په وجه پخپله په مسئله پوهیږي او نه به دکوم عالم تقلید ورته واجب وي ،چې دې سره به ورځنۍ چاري دځنډ وځنډ سره مخامخ شي او ټولنه به دتحیر او سرګردانۍ ښکار شي ،نو ددغو وجوهاتو او عواملو په وجه نن سبا پرعامو مسلمانانو تقلید واجب او په مذهبي دایره کې ننوتل ورته دفتنو او مشکلاتو څخه دخلاصون خورا ښه لاره ده لکه دالموسوعې پدې عبارت کې : الأوّل : جواز التّقليد فيها وهو رأي جمهور الأصوليّين ، قالوا : لأنّ المجتهد فيها إمّا مصيب وإمّا مخطئ مثاب غير آثم ، فجاز التّقليد فيها ، بل وجب على العامّيّ ذلك .....ولأنّ الصّحابة رضي الله عنهم كان يفتي بعضهم بعضاً ، ويفتون غيرهم ، ولا يأمرونهم بنيل درجة الاجتهاد . وقد أمر الله تعالى بسؤال العلماء في قوله تعالى : { فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُم لا تَعْلَمُونَ /الموسوعة الفقهية ج١٤ ص١٥٩) .

## تقلید شخصي :

په (احسن الفتاوی) کې مفتي رشید احمد رح فرمایي :دعهد رسالت نه واخله د دویمې هجري پیړۍ تروروستیو پورې غیر شخصي تقلید مروج و،څنګه چې دې وخت کې دمجتهدینوضوابط او اصول منضبط نه وو،نوځکه دکوم معلوم مذهب په پیروۍ کې ستونزه وه ،تردې چې ددویمې هجري پیړۍ په اواخرو کې خدای ج پرستوعلماووداصولو او فروعوپر تدوین شروع وکړه او ددوئ بااستعداده شاګردانوددې

سلسله پيل کړه او ددې تدوين او تهذيب يې وکړ،چې ددريمې هجري پيړۍ زياتو خلکو دتقليد شخصي په ډول اختيار کړ،دوئ دا اصول او فروع دقرآن او سنت په رڼا کې مدون کړل او داسې علماء وو،چې علم او پوهه يې منل شوي وه ،امام شاه ولی الله رح فرمايي چې :وبهذ المأتين ظهرفيهم التمذهب للمجتهدين باعيانهم وقل من كان لايعتمد على مذهب مجتهد بعينه وكان هذاهو الواجب فی ذالک الزمان (الانصاف ص۵۹)،نوکله چې نور مذاهب ونه ساتل شول، نو په څلورمه هجري پيړۍ کې صرف څلورمذهبه پاتي شول او دا دالله تعالی رحمت دی، چې په دې څلورو مذهبونو کې تقليد شخصي منحصر شو،حضرت شاه صيب فرمايي چې :ولما اندرست المذاهب الحقة الا هذه الاربعة كان اتباعها اتباعاً للسوادالاعظم والخروج عنهاخروجاً عن السواد الاعظم (عقد الجيد۳۸) ،ژ:يعنې نن سبا چې نور مذاهب نشته، همدا څلور مذاهب پاتي دي ،نوددې مذاهبو پيروي دسواد اعظم پيروي ده او ددې مذاهب اربعه وو نه خروج، له سواد اعظم نه خروج دی )همداسې (ملاجيون رح) په (تفسير احمدي ص۲۹۷)کې فرمايي : والانصاف ان انحصار المذاهب فی الاربعة واتباعهم فضل الهی وقبولية عندالله تعالی لامجال فيه للتوجيهات والادلة)،نو تقليد شخصي واجب دی او څنګه چې واجب کله (واجب لعينه) او کله (واجب لغيره )وي ،نو دلته وجوب لغيره مراد دی اوداځکه چې په ترک دتقليد شخصي سره مفاسد منځته راځي (احسن الفتاوی ج۱ص۴۱۱-۴۱۳).

دمفتي رشيداحمد رح له تحقيقي فتوی څخه په ډاګه جوته شوه ،چې نن سبادې موجوده عصرـوزمان کې شخصيـ تقليد واجب دی او څوک پدې باب دڅه ويلو قانع کوونکی دليل نشي ښودلای .

په (الموسوعة الفقهية) کې ليکي چې : دحافظ ابن عبدالبررح،علامه ابن قيم الجوزی رح او علامه شوکانی رح په څير علماء وايې چې تقليد حرام دی او دوئ استدلال پدې ډول کريمه وو آيتونو او دعلماوو په اقوالو سره کوي ،چې پکې دتقليد مذمت بيان شوی دی ( خو ددې آيتونو څخه چې دوئ پرې استدلال کړی ،غير شرعي تقليد مراد دی ،چې هغو به په ناروااوکې دخپلو مشرانو تقليد کاوه ،اوکوم تقليد چې جواز لري يا واجب دی ،هغه په شرعي مسايلو او جايزو اموراتو کې دی او دې کې کومه قبحه نشته، بلکې واجب هم دی !

د(اعلام الموقعين) ددې نقل قول په باب لاندينی وضاحت ځواب کې بسنه کوي چې وايي ( عَلَى حَدِّ مَا وَرَدَ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ لا يَحِلُّ لأَحَدٍ أَنْ يَقُولَ مَقَالَتَنَا حَتَّى يَعْلَمَ مِنْ أَيْنَ قُلْنَا (إعلام الموقعين ٤ / ١٨٧ ـ ٢٠١ ، ٢١١ ،))

په الموسوعة الفقهية کې ددې دويمې ډلې علماوو په ځواب کې چې له تقليد نه انکار کوي او دليل کې دمذاهبو دائمه وو اقوال راوړي، وايې چې شايد دائمه مذاهبو موخه ددې څخه چې ددوئ له تقليدڅخه پکې منع فرمايلې ، ددوئ هغو شاګردانو ته متوجه وي، چې هغوئ کې پخپله داجتهاد او دلايلو دحجيت دپيژندلو استعدادوو،نو دوئ دمحض تقليد څخه نهې وکړه، هرچې هغه عامی يا هغه عوام دي، چې نه د دلايلو دحجتيت اهليت نلري او نه ورسره علم راسخ شته، نو دوئ ته دائمه ووکلام ندی متوجه او پردوئ فرض ده، چې دکوم منل شوي امام او عالم څخه تقليد وکړي ،همداسې مو مخکې وويل چې دتقليد مانعين چې دتقليد په حرمت کې کوم آيتونه راوړي ،ددې څخه هغه تقليد مراد دی چې غير شرعي تقليد وي نه شرعي تقليد .

علامه ابن العربی په خپل تفسير( احکام القرآن لابن العربی ج۳ص۳۸۳)کې ليکي :
الْمَسْأَلَةُ الثَّالِثَةُ : تَعَلَّقَ قَوْمٌ بِهَذِهِ الْآيَةِ فِي ذَمِّ التَّقْلِيدِ ، وَقَدْ ذَكَرَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ ذَمَّ الْكُفَّارِ بِاتِّبَاعِهِمْ لِآبَائِهِمْ بِالْبَاطِلِ ، وَاقْتِدَائِهِمْ بِهِمْ فِي الْكُفْرِ وَالْمَعْصِيَةِ فِي مَوَاضِعَ مِنْ الْقُرْآنِ .
وَأَكَّدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ ؛ وَإِنَّمَا يَكُونُ كَمَا فَسَّرْنَاهُ فِي الْبَاطِلِ .

فَأَمَّا التَّقْلِيدُ فِي الْحَقِّ فَأَصْلٌ مِنْ أُصُولِ الدِّينِ ، وَعِصْمَةٌ مِنْ عِصَمِ الْمُسْلِمِينَ يَلْجَأُ إلَيْهَا الْجَاهِلُ الْمُقَصِّرُ عَنْ دَرْكِ النَّظَرِ .ژ: يعنې دې آيت کې دکفارو مذمت پدې شوی ،چې په کفر او معصيت کې دخپلو پلرونو پيروي کوي ،خوالبته په حق کې تقليد ددين له اصولو څخه يو اصل دی .

امام قرطبي رح پخپل تفسير(الجامع الاحکام للقرطبي) کې دتقليد په باب دلانديني آيت په تفسير کې خپل تحقيق داسې ليکلی :
وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لا يَعْقِلُونَ شَيْئاً وَلا يَهْتَدُونَ}.چې ځينوخلکودتقليد مذمت ته ددې فوق الذکر آيت سره تعلق ورکړی،پدې معنی چې څنګه چې الله تعالی دکفارو مذمت لدې امله وکړ،چې دوئ په باطل کې دپلرونو اتباع کوي ،او ددوئ پيروي په کفر او معصيت کې کوي ،نو لدې امله يې تقليد مذموم دی، خو دا په باطل کې صحيح دی او هرچې په حق کې تقليد دی، نو داددين له اصولو نه يو اصل دی او دا مسلمانانودعصمتونو نه يو عصمت دی، چې د درک له نظرنه مقصر جاهل او ناپوهه ورته پناه راوړي ،لکه پدې عبارت کې چې فرمايی (( أما التقليد في الحق فأصل من أصول الدين ، وعصمة من عصم المسلمين يلجأ إليها الجاهل المقصر عن درك النظر)).............



کله چې کوم عالم یا عام شخص دقرآن او سنت نه کوم دلیل نشي اقامه کولای، نو پرده لازم ده ،چې دده څخه دلوړې مرتبې عالم څخه تقلید وکړي ،په(إعلام الموقعين ٤ / ٢٣٦ ، ١٩٢ .) ابن قیم جوزی رح وایې ژباړه :چې دضرورت پر وخت تقلید جایز دی ،نوابن قیم جوزی رح چې یو ځای کې دتقلید حرمت باندې قول کوي، دادی گوروچې بل ځای کې دا نوموړی عالم هم دضرورت پر وخت دتقلید جواز قایل دی ،نو دې کې کومه قبحه نشته ،تردې چې امام احمد بن حنبل رح به هم کله نا کله دامام شافعی رح په قول فتوی ورکوله او پخپله به یې هم پدې اعتراف کاوه .په (مطالب أولي النهى ٦ / ٤٤٨ ).کې داسې لیکي چې : إِذَا سُئِلْتُ عَنْ مَسْأَلَةٍ لَمْ أَعْرِفْ فِيهَا خَبَرًا أَفْتَيْتُ فِيهَا بِقَوْلِ الشَّافِعِيِّ ، لأَنَّهُ إِمَامٌ عَالِمٌ مِنْ قُرَيْشٍ (١) ، وَقَدْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " لا تَسُبُّوا قُرَيْشًا ، فَإِنَّ عَالِمَهَا يَمْلأُ طِبَاقَ الأَرْضِ عِلْمًا ". ددې فوق الذکر تحقیق څخه بریښي چې دنفس تقلید څخه هیڅوک انکار نه کوي ،جمهور اصولیین علماء خو یې پروجوب قول کوي او دا دویمه ډله علماء چې تقلید یې نه مانه، هم دضرورت پر وخت پدې دلومړینو علماوو سره تقریباً متفق شول، چې تقلید دې صورت کې جایز او آن دعامو وگړولپاره دوجوب په درجه کې دی ،ځکه نن سبا په خلکو کې داجتهاد شرایط نشته ،اونه څوک مجتهدکیدلای شي ،نوضروربه دکوم امام تقلید کوي !

د عقایدوځینې علماء د اربعه مذاهبو نه خروج ته بدعت هم وایې ،دفتنو پدې دورکې، په شرعي لحاظ دیوه مسلمان لپاره تقلید کې کومه ستونزه نه لیدل کیږي او علماء یې دعوامومسلمانانو لپاره پر وجوب قول کوي ،لکه چې همدا خبره نامتو عالم ،محدث او فقیه علامه (محمد تقی عثماني رح) په خپله هغه رساله کې لیکلې، چې دتقلید دشرعي حیثیت په باب یې پکې تحقیق کړی ،نوموړی وایې ، لکه څرنگه چې (امام شاه ولی الله محدث دهلوي رح )فرمایي : چې په قرون اولی کې دکوم معین مجتهد په تقلید باندې خلک نه وو جمع شوي ،وروسته بیا په تقلید شخصي باندې اتفاق وشو،او بیا همدا واجب شو،چې ددې واضح نظیر

ددریم خلیفه حضرت عثمان رض په دور خلافت کې دقرآن دجمع کولو واقعه ده، چې له اوو حرفونو څخه یې په یوه حرف (دقریشو حرف)باندې خلک راجمع کړل او په همدې تلاوت لازمي کړل شو .

حضرت امام شاه ولی الله محدث دهلوي رح فرمایي :ان هذه المذاهب الاربعة المدونة المحررة قد اجتمعت الامة او من یعتد به منها علی جواز تقلیدها الی یومنا هذا ،وفی ذلک من المصالح ما لایخفی ،لا سیما فی هذه الایام التی قصرت فیها الهمم جدا او شربت النفوس الهوی واعجب کل ذی رأی برأیه... /حجة الله البالغه ج۱ص۱۵۴)ژ:له شک پرته چې ددې څلورګونو مدون شویو او لیکل شویو مذاهبو د تقلیدپه جواز باندې د امت اجماع ده ،او پدې کې چې کوم مصلحتونه دي ،هغه دچانه پټ ندي ،او مخصوصا پداسې زمانه کې همتونه لویدلي ،خواهش پرستي دخلکو په ختَه کې اخښل شوي او هر درأیې خاوند په خپله رأیه کبر کوي او مغرور دی.

(حکیم الامت مولینا اشرف علی تهانوي رح ) فرمایي : چې مسایل په درې ډوله دي : لومړی هغه چې په هغې کې نصوص متعارض وي ،دویم هغه چې په هغې کې نصوص متعارض ندي، مګردګنو وجوهاتو او معانیو محتمل وي،که څه هم داختلاف نظر په وجه یې ځینې معناګانې لیرې او ځینې نږدې معلومیږي ،او دریم هغه چې په هغې کې تعارض هم نه وي او یوازې دیوې معنی محتمل وي ؛لومړي قسم کې دتعارض دختمولو لپاره مجتهد ته داجتهاد او غیر مجتهد ته دتقلید ضرورت دی ،دویم قسم ته چې ظنی الدلالت ویل کیږي، دې کې داحدالاحتمالات دتعین لپاره داجتهاد او تقلید ضرورت دی ،اودریم قسم ته چې قطی الدلالت ویل کیږي ،دې کې نه مونږ اجتهاد جایز بولو او نه دهغې تقلید! (الاقتصاد فی التقلید والاجتهادص۳۴طبع دهلی به جواب شبه سیزدهم).

داسلامي امت دمحدثینو،فقهاواو مفسرینو له اقوالواو دلایلو څخه په ډاګه شوه ،چې ددین په فروعي مسایلو کې داربعه ائمه وو رح څخه دکوم امام او عالم تقلید دعامي یا امي شخص لپاره واجب دی اوله اربعه مذاهبو نه خروج حقیقت کې دسواد اعظم نه خروج دی ، نني مسلمان ته چې داهل بدعو اواهل اهواوو له هرې دروازې نه دفتنو لورې ته بلل کیږي، مقلد کیدل یا تقلید کول دنجات لاره او دمذهب له دایرې نه وتل دفتنو په ګردونوکې ځان ګردجن کول دي او بس ! (والله تعالی اعلم )

# نقش مطبوعات در جهاد

ابوصهیب حقانی هراتی

عصـری که ما در آن زندگی می کنیم از نظر کارشناسی موسوم به عصر انفجار اطلاعات است. چرا که رسانه و مطبوعـات یـا گـزارش و خبـر در دنیای امروزی حرف اول را می زنـد ؛ اکثـر مـردم دنیا علاقه مند هستند که خـود را از تـازه تـرین اتفاقات و رخدادهای اطراف خود آگاه نموده و از موضوعات گرم روز در جریـان باشـند ؛ و در ایـن راستا، مثل سایر وسایل ارتباط جمعی، مطبوعات جایگـاه خـاص خـود را دارد و علاقـه منـدان بسـیاری در سـطح دنیـا، از طریـق مطبوعـات معلومات لازمۀ خودشان را دریافت می کنند و از همین جهت است که روزانه صدها هزار روزنامه و بطور ماه وار و هفته وار ملیون ها مجلۀ هفتگی و غیره چاپ و منتشر می شـوند و همچنـان مـورد اسـتقبال گستردۀ جامعـۀ بشـری قـرار گرفتـه و تقاضای عمومی جوامع نیز به مراتب بر توسـعه و گسترش مطبوعات در انـواع و اقسـام مختلـف و انعکاس دهندۀ بخش های مختلف زندگی انسان ها تاکید دارد.

جهاد و یا فعالیت های نظامی آزادگـان راه حق و حریت نیز همانگونه که در پیشبرد اهـداف شان به مدرن ترین و مجهزترین تشکیلات نظـامی روز ضرورت دارند و موفقیـت بیشـتر عمومـا در داشتن امکانات نظامی پیشـرفته تـر و تجهیـزات قوی تر دیده می شود به همـان انـدازه بـه ترقـی دنیای اعلام و خبر که قطعـا "مطبوعـات" در ایـن بین جایگاه خاص خود را دارد ضرورت داشـته و بزرگان و مسـئولین امـور جهـادی بایـد متوجـه رسالت علمی و تبلیغاتی جهاد نیز باشند ؛ چرا که اگر هر قِسم پیشرفت های نظـامی وجـود داشـته باشد و هر قدر کامیـابی هـا نصـیب مجاهـدین شود ؛ اما از طریق دنیای اعلام و خبر از جریانـات جنگی و مبارزات حماسه آفرین مجاهدین به دنیا و ملتی که امروزه گوش و چشم شـان بـه دنیـای اعلام و خبر دوخته شـده نرسـد در فرداهـای نـه چنـدان دور بـه هـیچ یـک از دسـت آوردهـای جهادی استناد کرده نمی شود و چه بسا ملـت و احیانا مورخین بخاطر ارایـۀ حقـایق یـک دوران

مبارزه به سندهای مورد نیازشان دست نیافته و از بیان واقعیت ها عاجز بمانند ؛ از این جهت ضمن توجه به تمام وسایل مورد نیاز دنیای اعلام و خبر، به مطبوعات که بیشتر از آنکه در حافظهٔ ابزار تکنالوجی جدید محفوظ بمانند در کاغذ و کتاب محفوظ می ماند بسی ضرورت است که الحمدلله امروزه دیده می شود اکثر گروه های جهادی این مسئله را به شدت مورد توجه و عنایت خویش قرار داده اند.

به همان میزان که مسلمانان در تلاش هستند تا قهرمانی های فرزندان رشید اسلام در مقابله با متجاوزین کفری را قید و ثبت دنیای اعلام و خبر (و مخصوصا در مطبوعات) نموده و برجسته نشان بدهند و حقایق را بطور نوشتاری در قالب کتاب و مجله در قدم نخست به ملت های خویش و در قدم دوم به دنیای خارج معلومات دهند و تا حد توان می کوشند تا جلوی افواهیات بی بنیاد و تبلیغات بی اساس و پروپاگنده های زهرآگین دشمنان را بگیرند ؛ فراموش نکنیم که رسانه ها و مطبوعات دشمن نیز دست به همچون فعالیت ها زده و غافل از این امر نبوده و نیستند ؛ اما لله الحمد با وجود کمی امکانات تبلیغاتی از نظر کمیت و کیفیت آلات و وسایل مجاهدین به نسبت سرمایه و پیشرفت دشمنان، باز هم در صحنه عملی حرکت های رسانه ای و مطبوعاتی مجاهدین موازی با حرکت دشمنان و گاه حتی در بسیاری موارد پیش هنگام تر از آنها بوده که این خود نشانگر حقانیت حق و ابطال باطل را ثابت می سازد و اینکه مجاهدین عموما به نقش اساسی مطبوعات در جهاد کاملا واقف بوده و به خدمات جهادی از این قبیل، ارج می گذارند.

نقش مطبوعات در جهاد تا حدی مهم است که اگر خبری را دشمن در رسانه ها و مطبوعات خود علیه مجاهدین به نشر برساند و بسیار با آب و تاب آن خبر را به سمع و نظر مردم برساند و قصد شوم دشمن نیز عموما فریب و انحراف باور مردم نسبت به پیشرفت های روز افزون مجاهدین در عرصه های مختلف باشد ؛ اما همینکه همان خبر در مطبوعات رسمی مجاهدین به شدت تکذیب و یا رد شود ؛ تاثیر به سزایی بر روح و روان ملت گذاشته و تمام نقشه های دشمن را نقش بر آب می سازد ؛ و در این جا دشمن دو نوع هزینهٔ ارزشمند خود را مفت به هدر می دهد ؛ یکی وقت خود را که صرف این کارها کرده و زحمتی که کشیده بود ؛ و دوم اینکه سرمایهٔ مالی که در این راه مصرف کرده بود. و این کار (رد تبلیغات منفی دشمن) اگر هرچه توسط مطبوعات مجاهدین پر رنگ تر و جذاب تر، عام فهم تر و قریب به حقیقت تر نشر و چاپ شود و هر قدر که

بیشتر به دسترس عموم قرار گیرد به همـان میـزان تـاثیرات مثبـت آن بـه نفـع جهـاد مقـدس و مجاهدین قهرمان افزایش خواهد یافت.

که در اینجا مختصرا چند راهکار ذیل اگـر مورد توجه و عنایت قـرار گیرنـد ان شـاء اللّه کـه بسیار مثمر ثمر واقع خواهند شد:

به محتوای نوشتاری از نظر علمـی، خبـری، ادبی و واقعی، توجه جدی صورت گیرد ؛ یعنی در مطبوعات واقعیت ها به گونۀ به تصـویر کشـیده شوند که عموما مورد پسند و تایید قـرار گرفتـه و به عبارت دیگر خالی از گزافه گویی و اخبار دور از واقعیت باشند.

بـه جـذابیت ظـاهری و دیـزاین عنـاوین و کمیـت و کیفیـت مطبوعـات، در قالـب هـای دلچسپ توسط افراد ماهر و با سلیقه توجه جدی شود و کسانی بر این امـور گماشـته شـوند کـه از ذوق هنری و استعداد خوب برخور دار بوده و کار به گونۀ انجام شود که قبل از آنکه چشم دوسـتان به خوشی آن باز شود چشم دشمنان از دیـدن آن همه مهارت و سلیقه کور گردد.

برای رساندن مطبوعات جهادی حتما بایـد گروه هایی موظـف شـوند کـه آنهـا را بـه ملـت برساند و در این بـاره بـا در نظرداشـت مسـائل امنیتی، تمام جوانب مثبت سنجیده شود ؛ چـون هر قـدر کـه مطبوعـات جهـادی مجاهـدین در دسترس عموم قرار گیرد به همان میـزان شـناخت مردم از پالیسی و باور مجاهـدین، هـدف و مـرام شان آگاهی حاصل کرده و این مسائل منجـر بـه تقریب دیدگاه ها و ایجاد فرصت تبادلۀ نظریـات مشترک حاصل می شـود، و بـه نـوعی احسـاس خودی کردن ملت با مجاهـدین و مجاهـدین بـا ملت بیش از پیش افزایش می یابـد ؛ و همینطـور شک و تردیـدها نسـبت بـه دروغ رسـانه هـا و مطبوعات زهرآلود دشمنان افزایش می یابد.

گزینش و انتخاب افراد مسلکی در پّر محتوا کردن و جذاب کردن مطبوعات بسی مهـم اسـت، که اگر در این باره زمینۀ همکـاری اقشـار آگـاه و دلسوز جامعه با مجاهدین مساعد شود و اندیشه های آنها در صورت توازن و داشتن مشترکات بـا پالیسـی هـا و باورهـای مجاهـدین همخـوانی داشتند بسیار برجسته وتحسین برانگیـز چـاپ و نشر شود تا اقشار آگاه جامعـه در راسـتای ترقـی افکار مجاهدین از طریق مطبوعات بیشتر همگام و همراه شوند.

موارد فوق اگر مورد عنایـت مسـئولین ذی ربط قرار گیرند ان شاء اللّه در آیندۀ نه چندان دور تنایج بسـیار خـوب و درخشـانی در مطبوعـات جهادی رقم خواهند زد. ان شاء اللّه تعالی

# اسلامي امت

## ته له ورپیښو مشکلاتو نه د وتلو لار!

م . احمدګل ریان

د یویشتمې پېړۍ د لومړي سهار لمر د ختیځ په هسکو څرک وواهه او ژېړې وړانګې یې په درو او ځنګلونو خورې شوې، هماغه وو، چې د لویدیځ تورې شپې ته په ختیځ کې روان حالت له برداشت ووت او په دې هڅه کې شو، چې خپل تورتم یو ځل بیا په شرقي څوکو او لمنو وغوړوي، خپل له وحشت ډک زړه د ختیځوالو د وینو په تویولو تش کړي او له دې لارې په ګردده اسلامي نړۍ د واک چلولو تنده خړوب کړي، دغې ورځې داسې ښکاروله چې غرب په شرق باندې د یرغل لپاره همدا ورځ ټاکلې وه او راتلو ته یې انتظار و.

دې ورځې د قیامت یوه لیوه نښه ښکاره کړه، د قیامت د رانژدې کېدو او اخري زمانې په لویو نښو کې دا هم یادېږي ،چې کفار به په مسلمانانو داسې حمله وکړي، لکه په دسترخوان باندې چې وږي انسانان له یوې او بلې خوارا تول شي، دا په داسې حال کې چې د مسلمانانو تعداد به ډېر شوی وي ( لکه همدا نن چې ده )؛ داسې به ځکه کېږي، چې د مسلمانانو په زړونو کې به د دنیا محبت محکم ځای نیولی وي، نن بالکل همدا حالات وینو.

د اسلام دښمنانو د یویشتمې پېړۍ په راتلو سره په اسلامي هیوادونو یرغلونه پیل کړل، دا یرغلونه یا مخامخ او یا هم په غیر مستقیم شکل په مخ روان شول، په عراق او افغانستا مخامخ بریدونه، د مسلمانانو په بندیخانو کې شکنجه کول، د دیني شعایرو سپکاوی او په ځینو هیوادونو کې د مسلمانانو حکومتونو د ړنګولو لپاره د پیسو په بدل کې له یو شمېر منافقو او په نوم مسلمانو وګړو څخه استفاده کول او د دوی له لارې د مسلمانانو تحقیر او زورول او دغه راز د میډیا له لارې

مسلمانانو ته روحاً تکلیف رسول، دا ټول هغه څه وو، چې د دې پېړۍ له راتلو سره سم پیل شول، مغرب که څه هم نن سبا د مجاهدینو له لاسه یو دردونکی خجالت زغمي، خو بیا یې هم لاس، پښې او خوله له حرکته نه دي غورځېدلي او په دې فکر کې دی ،چې د اسلامي نړۍ نـژدې( ٦٠ )هیوادونه نور هم په تکړو وویشي، دې فکر ته لومړی په افغانستان او عراق کې د عمل جامه اغوندي، چې کیدای شي وروسته یې په نوره اسلامي نړۍ هم په عمل کې پلی کړي، په یادو دوو او نورو اسلامي هیوادونو کې به دوی ته لویه موقع لساني او مذهبي تعصب او اختلاف په لاس ورکوي.

آخر دا هرڅه ولې؟، مسلمانان چې ترڅو په دنیا کې د ترقي او تکاثر د مغربي سراب تر شا منډې تړړي وهي؛ همداسې به د دوی تحقیر او تذلیل جاري وي او د دین او عقیدې توهین به یې کیږي، دوی که غواړي له ورپېښو ناخوالو ځان خلاص کړي او له دنیاوي ترقي علاوه اخروي کامیابي هم ترلاسه کړي؛ نو باید خپلو اعمالو، قیادت، سمع و الطاعة، تعلیم او تربیة، کورنۍ او ټولنې او دغه راز ځینو نورو مهمو امورو ته توجه زیاته کړي، دغه امور په لاندې کرښو کې په لنډ ډول یادوو.

**١ - په صادقه او کامله توګه په اسلام کې داخلېدل:**

موږ په خپل تخلف او راپیښو مشکلاتو اعتراف کوو؛ نو له دې مشکلاتو او امراضو څخه د ځان خلاصولو لپاره تر ټولو لومړی باید په رښتینې توګه د الله تعالی لور ته وګرځو، په اوامرو عمل وکړو او له هغه څه ځان وژغورو چې شریعت کې ترې منع شوي یو، الله جل جلاله فرمایي چې: تر هغو د یو قوم حالت نه بدلوي، تر څو یې هغوی په خپله بدل نه کړي، نو مسلمان باید خپل اعمال احسن، اسلم او احوط ته بدل کړي، ترڅو یې الله تعالی وضعیت په ښه واړوي، که داسې ونه کړي؛ الله تعالی به یې په همدې تذلیل او تحقیر کې د زمکې له سره واخلي او په ځای به یې داسې قوم پیدا کړي چې د الله تعالی رښتنیني بندګي وکړي.

**٢ – جهاد، امر بالمعروف او نهی عن المنکر:**

مسلمان باید خپل اولاد ته جهادي تربیه ورکړي، له جهاد سره یې مینه پیدا کړي او موت في سبیل الله ورزده کړي؛ ځکه چې همدا جهادي هڅې به یې له

دښمنانو ژغوري، نبي عليه السلام فرمايي چې: ولن يصلح حال آخر هذه الأمة الا بما صلح به حال اولها، بالکل همداسي ده، د نننـي مسلمان حالت به په جهاد سره سمېږي؛ ځکه د امت د اولنيو خلکو وضعيت هم د جهاد په برکت سم او صالح وو، کله چې دښمن له شرق، غرب، شمال او جنوب نه په مسلمانانو يرغلونه پيل کړي نو د حل لاره يوازي او يوازې جهاد دی، نو ففروا الی الله!، خپل اولاد په جهادي تربيه وروزئ او امر بالمعروف او نهي عن المنکر ورزده کړئ؛ که مسلمان داسي ونه کړي او اولادونه يې داسې نرم رووږدي شي چې نه د هوا د څپو او نه د لمر د وړانګو تاب ولري نو څنګه به له دښمن سره د مخامخ کيدو استعداد پکې پيدا شي؟.

**٣ - اجتماع او خپلمنځي تعاون:**

دغه جمله واضحه ده او هيڅ تفصيل ته اړتيا نه لري، يوازي دومره به ووايو چې مسلمان بايد خپله اجتماع ونه پاشي، سره يو شي، خپل دښمن ښه وپېژني او يوې خوا ته يې کړي.

**۴ - د تعليمي منهج اصلاح او له فساد نه د رسنيزو وسايلو تصفيه کول:**

مسلمانانو ته د وړپيښو مشکلاتو نه د خلاصون له مهمو لارو نه يوه دا هم ده چې خپل تعليمي منهج او په خپلو هيوادونو کې فعالې رسنۍ اصلاح کړي، دوی بايد په خپلو سيمو کې تعليمي نصاب او اموزشي برنامو ته ډيره توجه وکړي او خپل نصاب او تعليمي اداري له هغو موضوعاتو او خلکو پاکې کړي چې اولادونه يې ورته په داسي تربيه روزي چې په پای کې په اصطلاح د دښمن تبر ته د لاستي کار ورکړي، دغه راز په مسلمانو هيوادونو کې د رسنيو اصلاح هم ډيره اړينه ده، دوی بايد خپلې رسنۍ ژورې مطالعه کړي، په نظر ورغلی فساد پکې له منځه يوسي، رسنۍ د ټولنې د اصلاح ذريعه وګرځوي او ديني او ملي ارزښتونو ته يې وفادارې کړي، که کومه رسنۍ د فساد په خپراوي ټينګار وکړي؛ بايد محو يې کړي.

**۵ - پاک او مخلص قيادت:**

مسلمانانو ته ضروري ده چې پاک او مخلص قيادت ولري، نن سبا چې مسلمان له کومو دربدريو سره مخ دي، د هغو لوي لامل د صاف او سپين قيادت فقدان دی، دغه جمود له ډيره وخته راروان وينو، زمونږ په هيواد کې د پاک او مخلص قيادت

گیری از مجاهده ومبارزات بی دریغ مردم افغانستان توانستند بریتانیا را از کشورهایشان ودر نهایت از منطقه بیرون رانند وپیروزی خود را جشن بگیرند.

در این شکی نیست که افغانستان در مبارزه برعلیه اشغالگران کنونی وامپراطوری غرب نیز پیشتاز بوده است ،زمانیکه استکبارجهانی (امریکا)با شرکای جرم بین المللی اش بر حریم مقدس کشور مجاهد پرور یورش آوردند،ملل دنیا در هراس بودند ومردم زمزمه میکردند که جنگ با امریکا حماقت ودیوانگی است زیرا آمریکا مجهز با مدرن ترین تکنالوجی واسلحه پیش رفته میباشد حتی که هر چیز را در زیر زمین می بیند لذا هیچ کس توان مقابله با این ابرقدرت جهان خوار را ندارد، اما غرب بی خبر ازاینکه خدای لایزال در این مرزوبوم ملتی را آفریده است که جهاد ومبارزه با متجاوزین وکفار سرشت زندگی آنها گردیده واز هیچ متجاوزی نمی هراسند، همین بود که ملت افغان با ایمان راسخ ودست خالی تحت قیادت زعیم فقید وبهادر امارت اسلامی تحرکات نظامی وسیاسی خود را در برابر اشغالگران وبردگان دین ستیز شان آغاز نمودند که بفضل ویاری پرودیگارمنان هزاران تن از عساکر وجنرالان بلند پایه غرب وهم پیمانانش رهسپار جهنم گردید وبصدها تن دیگر آنها معیوب شدند، همچنان هزارها تانگ زره پوش، وسائط نقلیه وطیارات شان تخریب وحریق گردید واقتصاد خود را نیز ازدست داد،بالآخره شیطان بزرگ (آمریکا) شکست وافتضاح خود را در سطح جهان اعلام کرد وگفت از طریق نظامی با طالب جنگ ناممکن است وحتی که آماده تبادله زندانیان با امارت اسلامی شدند، وچندین تن از قوماندانان برجسته مجاهدین تبادله واز زندان سیاه گوانتانامو رها شدند،بهر صورت بازهم ملت افغان برای جهانیان نشان دادند که جنگ با آمریکا مشکیل نیست وعساکر وحشی آن نیز کشته میشود، لذا ملت های دنیا دست به قیام ومبارزه در برابر امریکا زدند که فعلا اقتصاد کاهش یافت،دبدبه ورعب اش از بین رفت وامپراتوری شان نیزازهم پاشیده شد.

پس برای جهانیان ثابت شد که افغانستان کشورتسخیرناپذیر است و همواره گورستان امپراطوری ها و قدرت های اشغالگر و تجاوزگر بوده و این مهمترین پیام جغرافیای سیاسی و مردم افغانستان به اشغالگران و متجاوزین دنیا میباشد،لذا مجاهدین عزیز وملت شریف کشور با اتکا به الله بی نیاز ودوری جستن از تفرقه،تعصبات قومی، سمتی، لسانی ونژادی می توانند مسیر پیشرفت را برای ساکنان

این کشور باز کنند،اگر یک کشور در عرصه های سیاسی،فرهنگی واقتصادی استقلال نداشته باشد وبه خود کفای نرسد هر از گاهی میتواند مورد تهاجم قرار بیگرد،بطور نمونه تهاجم فرهنگی میتواند زوال ونابودی هویت یک کشور را در پی داشته باشد که افغانستان در حال حاضر برعلاوه اشغال نظامی تحت اشغال فرهنگی نیز قرار دارد،وفعلا فرهنگ غرب اکثریت مردم ما را به بی راهه کشانیده است.

بدون شک امسال(۲۰۱۵)بطور مجموع سال تظاهر قوّت،سلطه،فرمانروای،تسخیر شهرها،مراکز،مغلوبیت وهلاکت دشمنان خارجی وداخلی در سطح کشور بود،به عنوان مثال تصرف کامل ولایت قندوز،فتح بسیاری ازولسوالیهای استراتیژیک ومهم ولایات چون هلمند،زابل، بدخشان، فاریاب،جوزجان،سرپل،بادغیس،هرات،تخار، نورستان،لوگر،غزنی،کنر،پکتیکا و......بطور خلاصه در سلسله فتوحات امسال اکثریت اراضی کشور تحت کنترول مجاهدین قهرمان کشور درآمد،همینگونه مجاهدین در جریان تصرف شهرها وقصبات مورد استقبال گرم ملت خویش قرار گرفتند وسلوک نیک نیروهای امارت اسلامی با مردم خویش، رژیم کابل ومتجاوزین اشغالگررا نهایت نگران ساخت،زیراکه دشمن مجاهدین را چهر خشین،ضد ترقی وپیشرفت معرفی کرده بودند لکن طرز العمل وبرخورد صمیمانه ودلسوزانه مجاهدین ملت را مطمئین ودسایس دشمنان را نقش برآب ساخت، وشهروندان کشور عزیز دانستند که بجز تطبیق نظام اسلامی امنیت،رفاه وآسایش ممکن نیست،بخاطریکه ٤٦کشور اشغالگر با تمام تکنالوژی ومادیات دست داشته خود امنیت را تأمین کرده نتوانستند،بلکه برعکس دربین مردم وحشت مستولی بود وملت عزت نداشت،بلی یگانه نظام اسلامی است که به عزت،جان ومال مردم ارج میگزارد وبها قائل است نه نظام کفری ودموکراسی.بطور جمع بندی متذکربایده شد: که عملیات هدفمند،موفق،منسجم وگسترده امسال بنسبت سالیان گذشته از لحاظ آزادی ساحات،فتوحات،تلفات دشمن وبدست آوردن غنائم ازهمه کرده عملیات برازنده وموفق بود که در خاتمه اکثر اراضی کشور از لوث دشمن پاک وتحت تسلط وحاکمیت مجاهدین قرار گرفت.

به آرزوی فتح کامل کشور وتطبیق شریعت غرّاء محمدی صلی الله علیه وسلم.وماذلک علی الله بعزیز.

دمورچل او منبر

# دهمغږی موارد!

م محمد

لکه څرنګه چې دانسان بدن له مختلفو اجزاوو جوړ دی، بلکل همداسي داسلام مبارک دین مختلفي شعبې لري ، لکه څرنګه چې دانسان دبدن غړی هريو ځان ته ځان ته وظيفه لري، سترګي ليدل کوی ، لاس نيول کوي ، پښي تلل کوي ، خوله ويل کوي او ... چې په دې توګه يوکامل جسم په ښه طريقه ژوند کولی شي او دزماني له مشکلاتو سره دغري وهلی شي، همداراز داسلام دين هلته بشپړ اوکامل کيدلی شي، چې ټولي شعبې يوله بل سره همغږې ولري،

که څه هم په ظاهره ددې ټولو شعبو کار جلاجلا معلوميږي، خو په حقيقت کې ټولي شعبې ديوه مقصد لپاره دي اوهغه مقصد هغه مهال ترلاسه کيدی شي ،چې ددين داټولي شعبې يوله بله سره همغږې وي .

دقرآن کريم په دي مبارک آيت کې ( وانتم الاعلون ان کنتم مؤمنين ) او تاسو به سرلوړي ياست که تاسومومنان واست ) هم همدي خبرې ته اشاره کوي ، ځکه يومسلمان ترهغه کامل مسلمان کيدلی نه شي، چې ترڅو په بشپړه توګه مسلمان نه شي ، او کامل مسلمان هغه دی، چې ددين ټولي شعبې حق ورته ښکاري او چې په وس يې پوره وي ،په هغه شعبه اوبخش کې له خدمت کولو ځان ونه سپموي.

ددين ټولي شعبې يوله بله سره تړاو لري، خو ځيني شعبې له ځينو نورو شعبو سره خصوصي تړاو لري ، داسي تړاو چې يو دبل دبقا ضامن دی، په دوئ کې که هره شعبه له هغه بلي سره اړيکي پرې کړي ،نو خپله همداشعبه به هم له منځه ځي.

که څه هم جهاد داسلام دمبارک دين دټولو شعبو ساتونکی او دمسلمانانو

دسـرلوړي رازپکـې نغښـتی ،خوپـه ټولـو شعبوکې يې له منبر اومحراب سره ټراو بيخي زيات دی ، داسي تړاؤ لکه په بدن کې چـې ددمـاغ او زړه دی ، همـدالامل دی، چې تل يرغلګرو يهودو اونصاراوو اونورو متعصبو کفارو داهڅه کړي ترڅو منبر او مورچل سره جلاکړي.

ځکه دايوڅرګندحقيقت دی ، چې ديوه په فلج کولو سره هغه بل بيکاره اوياهم له منځه وړل کيږي.

څرنګه چې منبر دقرآن ، حديثو ، ديني کتابونو دتدريس ، دالهي احکامو : فرائضو ، واجبـاتو ، سـننو اومسـتحباتو دبيـان اوپـه خلکو کې يـې دعملي کولـو لپاره ستر رول اداء کـوي ، مورچـل تـه دځوانـانو هڅولـو او داسلامي نظام دقيام لپاره دهغوی وينـي په جذبو راوستلو کې خورا مهم رول لـري ، همـداراز مورچـل دمنبـر په شمول دالهي قـانون اونـورو ټولـو اړونـده ادارو سـاتنه او حفاظت کوي ،

دمنبربقاء په دي کې ده ،چې دمورچل ستاينه او ساتنه وکړي او دمورچـل بقاپـه دي کـې ده، چـې خپـل ټـول مسـائل لـه منبره حل کړي.

نـو ځکـه خـو بايـد مسـلمانان دي تـه متوجـه شـي، چـې دا داسـلام زړه اودماغ يوله بل سره په ښو اړيکو کې وساتي ،کنه وي ،بيا به اسلام فلج وي اويابه هم له هغې نقشې ورکيږي، چېري چې دا آفت راغلی وي .

منبردعامـه پوهـاوي او عامـه مسلمانانو ديـوې مهمـې درسګاه پـه توګـه پيژندل شوی، دمنبرخاونـدان کـولی شـي ، دا شـيندلی او ټوټـه ټوټـه امـت راټـول کړي، مسلمانان يو ځل بيا پـه يـوه قومانـده کې راټول کړي،

دمنبـر اومورچـل داتحادلپـاره ترټولـو مهم شئ دعصبيت لـه منځـه وړل دي ،چـې د علاقې ، نسل ، رنګ ، هيواد ، قوم ، وطن ،ژبې ، خاندان حسب اونسب پـه بنيادباندي ډلبازۍ ته عصبيت ويل شوی،

کـه دکـوم فـرد يـا ډلـي لـه لـوري د کـوم تقريـر ، تحريـر يـا لـه عمـل څخه دعصبيت بوی راشي، نـو سمدستي يـې بايـد چاره وشـي اوپـه دې هکلـه بايـد لـه هـرې ممکنـې لاري څخـه ګټـه پورتـه شي ، ځکه ديـوه انسان شورش هم غټه خبره ده ، څرنګـه چـې د اورلګيت (مـاچس) يـوه لګـول شـوي دانـه ټولـه نړۍ سوځولی شـي ،نـو يوانسـان هـم يـوه غټـه فتنـه راولاړولـی شـي ، نوځکـه ضـروري ده چـې مسلمانان بايد له عصبيت څخه په کلکه را

وګرځول شي او داتحاد اواتفاق هراړخيز کوشش يې وشي.

اتحاد اواتفاق يو داسي ټولنيز ضرورت دی ،چې له هغه پرته ديوې کورنۍ او قوم دبقا تصور هم نه شي کيدی، چې بيا هم داتحاد ترټولو سترننګونکی عصبيت دی ، ځکه عصبيت دانسانانو جذبات منفي لوري ته بيايې ،عصبيت انسان ړنده وي ، دانسان عقل مفلوج کوي ، تفريق خوروي ، نوچيرته چې عصبيت وي هلته اتحاد ممکن نه دی

دعصبيت له منځه وړلو پرته په مسلمه امت کې داتحاد آرزو او هيله لرل تش دخوب ليدلو مترادف دي،

همدا لامل دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دعصبيت په سختو الفاظو غندنه کړي او په يوه مبارک فرمان کې يې راغلي : څوک چې په عصبيت باندي ومړ، هغه په جهالت باندي ومړ اوڅوک چې خلک عصبيت ته رابولي ،هغه له موږ څخه نه دی ، څوک چې په عصبيت سره جګړه کوي، له موږ څخه نه دی ، اوڅوک چې په عصبيت باندي ومړ، له موږ څخه نه دی.

اتحاد ترټولو لوی اصل دی:

اتحاد ژوند دی او تفرق مرګ دی، اتحاد دترقي لمړنی شرط دی او بي اتفاقي دبربادۍ لمړۍ زينه ده ، که موږ متحد شو، نو په زمانه کې به له هرډول ستونزو سره دغره وهلی شو او همدا دتاريخ ترټولو لوی سبق دی، مګر ډير افسوس چې دتاريخ همدا سبق چې څرنګه موږ مسلمانانو هير کړی، بل مثال يې ونه لرو.

بل پلو دامهال ديوه منظم پلان له مخې په امت کې دانتشاراو له علماووڅخه دمنتفرکولو فتنې ته هوا ورکوله کيږي ، ځکه داسلام دښمنان له اوږدو تجربو وروسته دې نتيجې ته رسيدلي، چې دمسلمانانو په بدن کې دجهاد ولولې پارونکي او دکفردمقابلې لپاره په تشو لاسونو ځوانان دهمدې منبرله اوازه تياريږي، نوځکه دښمن پوره زورکوي، چې عام مسلمانان اومجاهدين له علماوو نه رابطه وشکوي اوپه يو بل يې بدګمانه کړي ، کله استخباراتي کړۍ په منبر اومحراب کې ماين ځای پرځای کړي، ترڅو امام اوڅو نورلمونځ کونکي وربانديي شهيدان کړي اونيغ په نيغه يې دپړي ګوته دمورچل لوري ته ونيسي اوکله بيا په عامه له ګڼي ګوڼي دکو بازارونو اومارکيټونوکې دتکتيکي ماينونوپه مټ چاودني کوي اوبيايې هم نيغ په نيغه ګوته دمورچل زلميانوته نيوله کيږي، چې داټولي دسيسي دهمدي لپاره دي

،چې ملت، منبر اومورچل یوله بله سره فاصله پیداکړي.

که داندلس تاریخ ته سرسري نظر وکړو، هلته چې د (ازابیلا اوفردیناند) ملګرو کله مورچل اومنبر یوله بل سره په فاصله کې کړل، نویې په لنډه موده کې ، د(غرناطې ، اشبیلیې ، قرطبې) اونور وروستي مورچلونه هم له مسلمانانو ونیول اوکله چې په دې کامیاب شول او مورچل له منځه لاړ، نور منبر اومحراب په خپله داسې پاتي شول چې آن بیایې چا دتکبیر زوږ هم وانه ورید.

که لیري نه ځو، په دې نږدې (ماوراء النهر ، سمرقند ، بخارا ، ترمذ اونورو ښارونوکې چې دوخت ددین ترټولو ستردیني مرکزونه وو، هم هغه مهال اسلام له منځه لاړ،چې کله لمړی دمورچل اومنبرترمابین فاصله پیداکړله شوه او ددې درز رامنځه کیدو سره هغه محدود څوتنه چې په حقایقو پوهیدل، له لږې جګړې وروسته یاشهیدان یاتسلیم شول ،چې له دې سره منبرهم خپله له منځه لاړاو بیاچاله منبرڅخه دحق اواز پورته کیدل وانه ورید.

نوهمدالامل دی ،چې اوس ډېره هڅه کیږي ،ترڅو دمنبر اومورچل ترمنځ فاصله پیداکړي ، یوڅوتنه کرایه شوي کسان په منبرونو باندې راوستل شي ، دجهاد اومجاهدپه خلاف اواز پورته کړي، هغوی ته تروریست او دهشت خورونکی وویل شي، دماشومانو ذهنیتونوکې مو دپلرونو اونیکونو دښمنان ترټولو خوا خوږې معرفې کړي، دپلارتوره مو له لاسه وباسي او بیا زموږ دمساجدوهم هماغه حال شي، لکه څرنګه چې یې په اندلس اونږدې ماوراء النهر کې وینو!



# د خالد بن ولید (رضي اللّٰه تعالی عنه)

## له معسکر څخه تفصیلي راپورتاژ:

ترتیب: محمدالیاس عاصم

بسم الله الرحمن الرحیم

د امریکایي اشغال له پیل څخه د روان جهاد دبهیر د پاللو او ګرندي کولو لپاره، د اسلامي امارت مشرانو او رهبري الحمدلله د مجاهدینو سالمې روزنې ته متوجه وه او دهر کال په تیریدو سره یې نوښتونه په کې راوستي او د جهادي حالاتو او مقتضایاتو سره سم یې مجاهدین په ښه ډول رهبري کړي.

په ابتداء کې د اشغالګرو په وړاندې له مخامخ جګړې را ونیسه بیا تر کمین بریدونو، د ماینونو ځای په ځای کولو، فدایي بریدونو او بیا مخامخ او جبهي بریدونو پورې مختلف پړاونه یې طی کړي دي.

د جهادي صف د تقوي او هر کال نوښتونو له ټولو نه ډیره مؤثره یې هغه د اسلامي امارت په چوکاټ کې د نظامي کمیسیون په هلوځلو او درهبري په ځانګړې توجه سره د معسکراتو جوړول او بیا په ښه ډول پالل وو.

د اسلامي امارت نظامي معسکرات یا دمجاهدینو روزن ځایونه د هرې ورځې په تیریدو سره پرمختګ کړي، د دښمن د ټولودسیسو په وړاندې یې لازم ګامونه اخیستي او دنړۍ له خورا پرمختللو او پیاوړو وسلو سره یې د مقابلې طرز او طریقه مجاهدینو ته ښودلې ده.

له معنوي او اخلاقي اړخه یې را ونیسه بیا تر پوځي او بدني روزنې پورې یې د مجاهدینو په کړنو کې مثبت بدلون راوستی، هر مجاهد یې د الله تعالی په وړاندې تعهد، تقوا، د نیت اصلاح، د امیر اطاعت، دصف وحدت ،دخپل ولس سره ښه چال چلند او په ټولنه کې نیک برخورد ته متوجه کړی دی.

دهمدغې سالمې روزنې نتیجه وه چې له خورا ډیرو دسیسو، د دښمن له مختلفو

غولونکو پلانونو او فشار اچونو سره سره بیا هم دښمن ونه توانید چې دځوارلسوکالونو په جریان کې مجاهدین منحرف کړي، نیت یې کمزوری کړي، اراده یې متزلزله کړي او یا خدای مکړه په جهادي صف کې د مجاهدینو ترمنځ کومه بد بیني ایجاد کړي.

د نظامي معسکراتو دتربیې په برکت پر اشغالگر او غلام دښمن خورالوی او پیچلي بریدونه پلان او عملي شول چې دښمن یې هک پک کړ او اراده یې ورته وځپله.

دفدایي مجاهدینو روزل، هغه وسیله او وسله وه چې په وړاندې یې د امریکا او ورسره ۴۹ هیوادونو تکنالوژۍ گونډه شوه او تر ننه پورې یې په هیڅ تکتیک او دسیسه هم مخه نشي ډب کولای.

له هغې راپه دې خوا له تیر کال راهیسې د هیواد په لر او برکې د جهادي قطعو جوړیدل او بیا په خورا پیاوړې روحیه، منظم شکل او ډیره مدبره قوماندانه سره دجهادي صف سره اوډل یې بل کمال وو چې له بهرني او کورنۍ دښمن ترینه هره ورځ د درنو تلفاتو او دسیمو د لاسه ورکولو صحنې گورئ.

په لنډو به ووایو چې په دې راپور کې مو د دغو ټولو شهکارونو د یوه مرکز د اسلامي امارت دمهم نظامي معسکر او د مجاهدینو د روزنې له یوې پیاوړې دستگاه څخه لیدنه کړې چې تاسو لوستونکي یې د اوسیدو، روزنې، مشرانو، استادانو، او تر روزنې لاندې مجاهدینو له حاله خبروو او د اسلامي امارت د ستنو د ټینگښت په لاره کې یې تر ټولو مهم او قوي مرکز بولو.

دغه مرکز د خالدبن ولید (رضي الله تعالی عنه) په نوم جهادي معسکر دی چې مسئولینو یې د ایجاد او په پښو درولو لپاره ډیره سعیه کړي او الحمدلله ثمره یې ټول امارت او هیوادوال گوري.

د خالد بن ولید(رضي الله تعالی عنه) معسکر ته له ډیرو امنیتي او احتیاطي تدابیرو او کمربندونو تیر شوو، دغه معسکر چې په خورا ښه ځای کې یې موقیعت درلود، د داخلیدو شرائط یې ډیر گران وو چې ډیر مشران او امارتي مسئولین لا نه وو توانیدلي چې ورڅخه لیدنه وکړي.

مسئولینویې په ډیره استثنایي توگه موږ ته اجازه راکړه چې له دغه معسکر څخه لیدنه وکړو او بیا پرې راپور ولیکو.

معسکر داسې جوړ شوي وو چې د خورا ډیرو کسانو لپاره داوسیدو خونې، منظم د سپورت او نظامي زدکړومیدان، د ژمي او دوبي له تغیریدونکې هوا سره لازم او مناسب چاپیریال، دلمر له انرژۍ څخه په استفاده

همیشنی برق، د خوراک او څښاک منظم پلان او دیومجاهد د روزنې لپاره په کې ټول اړین شیان په پام کې نیول شوي وو.

موږ معسکرته ننوتو، له یوه مرتفع ځای څخه مو د هغو مجاهدینو لیدنه وکړه چې صف صف ولاړ وو او د خپلو استادانو لارښونې یې په عمل کې پیاده کولې.

ټولو په منظم نظامي لباس کې، له لازمو وسلو سره په ډیر کلک دسپلین د تعلیم پړاونه طی کول، فضاء د جهادي اعداد ګرځونو په سر اخیستې وه، او د ملکوتي تکبیرونو آوازونه اوریدل کیدل.

په یاد معسکر کې مو دسترګو لیدلي حال برسیره د معسکر له مسئول، یوتن استاد اویوتن تر روزنې لاندې شاګرد سره په لنډ ډول د زړه خواله وکړل چې لاندې یې لوستلو ته ستاسو توجه را اړوو.

دمعسکرمسئول :

د معسکر له مسئول حاجي آغا څخه مو د روغ بړ اوهرکلي څخه وروسته وپوښتل چې د دې معسکر بنیاد یې څرنګه کیښود، اسلامي امارت د معسکراتو اهمیت ته څومره متوجه دی او څومره موده کیږي چې دا معسکر جهادي خدمت کوي؟

ځواب: نحمده ونصلی علی رسوله الکریم امابعد: بسم الله الرحمن الرحیم

اګرکه پخوا په جهادي صفوفو کې د معسکراتو شتون او جوړښت ته پاملرنه لږ وه او مجاهدینو په هرځای کې پخپله زده کړه او خپل فکر جهادي کارونه پرمخ وړل، خو له ډیرې موده کیږي چې الحمدلله د اسلامي امارت مشرانو او رهبري، ورسره ټول نظامي مسئولین، دلګی مشرانو او عام مجاهدین دمعسکر په اهمیت پوهیدلي، ګټه یې ورته کړې، جهادي جریان یې ګړندی کړی، او د دښمن په مقابل کې یې د مجاهدینو په ځواک او پیاوړتیا کې ډیر ښه او مثبت رول اداکړی.

کله چې ماته ددې معسکر د جوړیدو او سرپرستی دنده را وسپارل شوه، نو زهم چون له پخوا مسلکي سړی نه وم او دنظامي رزونې په اسرارو ډیر نه پوهیدم خو د وخت په تیریدو سره ماته د معسکر او دمجاهد د روزنې اهمیت جوت شو او په معسکر کې د خدمت تلوسه مې لا ډیره شوه، خو د تعجب ځای داده چې زه بیا په دې فکر کوم چې زه به څرنګه وتوانیږم چې مشرتابه په دې باندې قانع کړای شم چې دمعسکر موجودیت، پالل او بیا دمجاهد روزنه دومره مهمه او مثمره ده.

کله چې ما د امیرالمؤمنین ملا اخترمحمد منصور حفظه الله سره د لیدو اراده

وکړه نو ما هغه کوله چې څرنګه داسې الفاظ پیدا اوبیا خپل مشر ته بیان کړم چې دهغه په وسیله معسکرته د منصور صاحب ډیره توجه راوګرځوم، خو د خوښۍ ځای داوو چې کله ما له هغه سره لیده کاته وکړل او د معسکر یادونه مې ورته وکړه، نو پخپله امیرالمؤمنین منصورصاحب حفظه الله ماته د معسکر دومره اهمیت بیان کړ چې زه ورته حیران شوم او څومره چې ما تصور کاوه له هغه ډیر پخپله امیرالمؤمنین ددې کار په اهمیت پوهیده، او ډیره وجه یې هم داوه چې پخپله منصور صاحب په معسکر کې وخت تیر کړی وله معسکر څخه فارغ شوي وو او دجهاد لپاره یې په ډیره ښه توګه نظامي روزنه لیدلي وه.

منصورصاحب د معسکر په شرائطو ډیر ښه پوهیده، مثلا موږ چې کله معسکر افتتاح کاوه، موسم ډیر سوړ وو، نو موږ پلان نیولی وو، چې په معسکر کې د مجاهدینو د تودو اوسیدو لپاره خاصې زیرزمینۍ جوړې کړو، د مجاهدینو لپاره خاصې تودې جامې پیدا کړو، په دې اړه موله امیرالمؤمنین څخه دمصارفو غوښتنه وکړه او مشوره مو ځینې وغوښته چې کله د تودو ځایونو پیدا کول ممکن نشي نو آیا په ژمي کې معسکر رخصت کړو او که له صحرا څخه کلیوته ولاړ شو او دمجاهدینو لپاره په کلیو کې تاوده د اوسیدو ځایونه پیداکړو؟

امیرالمؤمنین راته وویل چې کله موږ جهادي زدکړي کولې نو نه به په ډیرو تودو سیمو کې اوسیدو او نه هم په ډیرو سړو سیموکې، ځکه که د اوسیدو او خوب لپاره تاوده ځایونه ورته پیدا هم کړو، نو بیا به د تعلیم او سپورت په وخت کې څه پرې کوو؟ نو ښه داده چې د معسکر د مجاهدینو تعداد دې کم وي، خو کلیوالي سموته لاړ شئ، هلته هستوګنه غوره کړئ.

پوښتنه : آیا امیرالمؤمنین (حفظه الله) له تاسو سره د مصارفو او نور برخو لازمه مرسته کوله؟

هو! مامخکې وویل چې امیرالمؤمنین پخپله نظامي ټریننګ کړي وو، ماته یې وویل چې زه د دې کار په اهمیت هرڅومره ډیر پوهیږم،اودمصارفوپوره ډاډیې راکړ ، د امیرالمؤمنین خبرو زه نور هم ددې کار اهمیت ته متوجه کړم، شوق مې ورسره زیات شو، همدا وجه ده چې دا دوه نیم کاله کیږي، زموږ له معسکر څخه ۱۲ دورې مجاهدین فارغ شول، په هرکال کې موږ ۵ دورې مجاهدین فارغ وو او تراوسه په خپل کار کې له هیڅ مشکل او ستونزې سره نه یو مخ شوي.

پوښتنه: د معسکراتو د ډېرې کامیابۍ او پرمختګ چې جهادي صف ته د ښو او روزل شوو مجاهدینو د تقدیمولو باعث شوو خصوصا په جهادی اونظامي قطعاتو کې، د دې علتونه څه راته ښودلی شئ؟

ځواب: د معسکراتو په پرمختګ کې خو یو لکه مخکې مو چې وویل د مشرتابه خاصه توجه او همکاري وه، په دوهمه درجه کې دلته استاذانو او جهادي منسوبینو، مسئولینو او پخپله مجاهدینو هم ډېره سعیه کړې، اخلاص یې کړی، زحمت یې ایستلی او په ډېره تنګسه کې یې خپل کار پرمخ بیولی، له هیڅ خطر څخه یې ویره نه ده کړې، د مجاهدینو په ښه روزنه کې یې که هغه په اخلاقي برخه کې وو او که په نظامي برخه کې په دواړو برخو کې یې ډېره ستړیا ګاللې، ډېر اخلاص او زحمت یې راسره کړی دی چې دا کوښښونه او سعې یو له بل سره یوځای شوي او د ټول معسکر د بریالیتوب باعث ګرځیدلی دی.

بل موږ د اسلامي امارت له نورو معسکراتو څخه هم معلومات کړي، دهغو له معسکراتو څخه له فارغو شوو مجاهدینو څخه مو مشوره غوښتې چې موږ خپلو نیمګړتیاوو ته متوجه کړل شوي یو،که هغه د مجاهدینو د بدني او اخلاقي روزنې په برخه کې وي، که د معسکر د اداري او نظم په برخه کې، که هغه د استاذانو دچال چلند په برخه کې وي او کـه د مجاهدینو د خوراک، څښاک او لباس په برخه کې، یا په نورو لازمو برخوکې، چې په دې کار سره موږ خپلې کمۍ او کاستۍ پوره کړې دي او اوس الحمدلله په ډېره ښه سویه مجاهدین روزو او دجهادي لیکو د تقویت او پیاوړتیا سبب شوي دي چې تاسو یې دا دی دنزدې وینئ.

پوښتنه: د لته په معسکر کې ستاسو او په خاص ډول د استاذانو چلند له مجاهدینو سره څه ډول دی، آیا مجاهدین راضي دي؟

ځواب: د دې پوښتنې په ځواب کې به زه دیو مجاهد لنډه کیسه درته وکړم، دلته له موږسره د زابل یو مجاهدوو ماته یې ویل چې ما په یوبل ځای کې هم تعلیم او نظامي رزونه لیدلې ده، خو هلته به د استاذانو چلند ډېر سخت او کله کله له غوسې څخه ډک وو چې موږ به له ډاره استاذانو ته خبره نشوای کولای، مګر دلته په دې معسکر کې د استاذانو د شفقت، الفت او محبت له وجهې زه دې خبرې ته وارخطا یم چې موږ به له خپلو استاذانو، دا نورو ملګرو مجاهدینو او د معسکر له مسئولینو څخه څه ډول جلاکیږو؟ ځکه دا به راته ډېره ناقابل برداشت صحنه وي.

او واقعا هم چې کله دلته شاګردان فارغه کیږي او له خپلو استاذانو اوله معسکر څخه رخصت اخلي، نو د ژړا او ویر یوه صحنه وي، له ډیر محبت او الفته یو له بل څخه د فراق هیڅ برداشت نشي۔ کولای، په ژړا او په سرو سترګو له معسکر څخه وځي چې ما مرکه کونکي دا حالت په خپلو ستر ګو لیدلی .

پوښتنه: په معسکر کې چې څوک له ځانه سره د استاذانو په توګه منئ هغوی څه ډول کسان دي او څه څه مواصفات باید ولري؟

ځواب: زموږ سره دلته استاذان داسې کسان دي چې ټول الحمدلله عالمان یامشران طالبان دي، په دین ښه پوهیږي، په نظري لحاظ ویښ او ځیرک خلک دي، تقوا، دیانت، حلم او برداشت لري، په لومړي سر کې زموږ سره اکثره استاذان فدایان وو چې د فدایي بریدونو لپاره یې هم نومونه ثبت کړي وو، اوس د زمان په تیریدو سره دلته هم داسې کسان فارغه شول چې هغه زموږ د مرکزي معسکر او وروسته د فرعي معسکراتو لپاره د استاذانو په توګه استخدام شول، هغه الحمدلله ټول د پورته مواصفاتو لرونکي خلک دي، ډیر زړور، صبرلرونکي، تقوا لرونکي، قربانۍ ته تل آماده، دکفارو په دسیسو ډیر پوه او ویښ کسان او داسې استاذان لرو چې هم په بدني روزنه او هم په اخلاقي روزنه کې نمونې دي او د دین په اساساتو ډیر ښه علم او فقاهت لري په دري او پښتوژبو دواړو تعلیم ور کوي .

پوښتنه: تاسو په معسکر کې د مجاهدینو لپاره خوراک، لباس او نور ضروریات څه ډول مهیا کوئ؟

ځواب: د اسلامي امارت د اقتصادي توان مطابق موږ دلته په معسکرکې مجاهدینو ته د خوراک او لباس ډیر ښه انتظام کړی، خوراک مو د ډاکټرانو په مشوره داسې ورته په پام کې نیولی چې دمجاهدینو د سپورت او نورو تمرینونو په وخت کې چې کومه انرژي ضایعه کیږي، هغه باید بیرته پوره کړي، غوښې، وریجې، لوبیا، نخود، کچالو او نور لازم شیان ورته پخوو، همدا راز د مجاهدینو د معسکر لباس لکه څرنګه یې چې تاسو هغه ده ګورئ خاص یونیفورم دی، چې په شرعي طریقه جوړ شوی، هم آزاد دی چې مجاهدین په کې د تنګي احساس ونه کړي، هم دنظامي زدکړو او تمرینونو سره مناسب په برګ کماندویي شکل جوړ شوی دی، ښه کلک بوټونه چې ځغاسته په کې آسانه وي دا مو ورته تیار کړي، همدا راز مو د سرلپاره خاص دستمالونه ورکړي چې سر پرې پټوي، په دې

لباس کې هم د مجاهدینو د استراحت احساس په نظر کې نیول شوی، هم د لمونځونو د اداکولو حالت .

همدا رازموږ دلته آشپز خانه لرو، ښه آشپزان مو په کار ګمارلي، نانوایي دننه په معسکر کې لرو، د مجاهدینو د مریضي ـ لپاره مو دلته په معسکر کې یو کلینیک جوړ کړی چې اوس تاسو پرې ګرځوو، ټول لازم درمل لرو،داولیه کومکوډاکټران راسره دي تر دې چې درې ورځې مخکې یو مجاهد سخت ناروغ شو اوس هم دلته له موږ سره په کلینیک کې بیستر دی، د هغه ټوله پالنه همدلته په معسکر کې دننه وشوه.

پوښتنه: تاسو دلته په معسکر کې د مجاهدینو ورځنی تعلیم څه ډول پیل کوئ، سپورت، نظامي زده کړه، بیا درسونه، چې اخلاقي تعلیم، دیني روزنه، دجهاد په احکامو دمجاهدینو پوه کول، مجاهدین متعهد کول او له نړیوالو حالاتو خبرول، په دې برخه کې که لنډ لنډ معلومات راکړئ؟

ځواب: زموږ دمعسکر تقسیم الاوقات په څلورو برخو ویشل شوی دی، چې ډیر تمرکز په اصلاحي برخه، اخلاقي روزنه او دیني زدکړه خصوصا دجهاد په اړه په معلوماتو شوی دی.

لومړی برخه موږ مجاهدینوته په یوه دوره کې دقرآن کریم د سورة الانفال اوسورة التوبة ټوله ترجمه اوتفسیر تدریسوو ، دمشکوة شریف کتاب الامارة والقضاءاو کتاب الجهاد، اودارنګه سیرة النبي صلی الله علیه وسلم، اوپه فقهي برخه کې فقهي لازم احکام مجاهدینو ته ورښیو.

دوهمه برخه نظامي سبقونه دي، چې په هغه کی دټولو هغو اسلحو چې مجاهدین یې په لاس کې لري، په مسلکي اوفني شکل ورته تدریسوو،چې په هغه کې دټولو اسلحو دوربینونه اوهمدارنګه لکه کمپاس اوزاویه اوداسې نور چې په اسلحو پورې مربوط وي ښه په مسلکي شکل تدریسوو اوهمدارنګه انفجارات چې په هغوئ کې دبارودو ټولې فارمولې اودمین جوړولو طریقې اوداسې نور احتیاطي تدابیر ورته ښیوو.

دریمه برخه سپورټ اوعسکري حرکتونه دي، چې په هغه کې هره نوعه تکتیکونه چې په جنګ کې په کاریږي اوداسلحو داستعمال طریقه اوهمدارنګه دمجاهد بدن په سپورټ باندې چست اوچالاک کیدل اودارنګه مناسبه منډه وهل ټول پکښې شامل دي.

څلورمه برخه عامه پوهاوی چې په هغه کې هم زیات علوم شامل دي، لکه

داستخباراتو علم، چې په هغه کې ددښمن پېژندنه ددښمن دمابين څخه معلومات راټولول اوهمدارنګه مجاهدين ددښمن دمکرونو اودسيسو څخه خبرول اوپه دې علم کې نور ډير داسي شيان شامل دي، چې مجاهد په فکري لحاظ ډير ويښ اوبيداره کو ي اوهمدارنګه نقشه چې په هغه کې علم جغرافيه په سياسي اوجغرافيوي شکل تدريسيږي چې په هغه کې دغټو اسلحو دهدف ويشتلو مسافه استقامت اوهدف معلوميدلای شي اوپه سياسي لحاظ مجاهد ته زيات معلومات پکښې شامل دي . ددې ترڅنګ جي پي اس ، مخابره اوداسې نور شيان چې مجاهد ورته ضرورت لري، ټول ورته ويل کيږي ..

په عمومي ډول د وخت دکمي له امله چې د دورې زمانه کمه ده، موږ هڅه کوو چې دلته د راغلو مجاهدينو ټول وخت د سهار له لمانځه څخه رانيولي بيا تر ماخوستن تر لمانځه پورې يو دودي، لمانځه او د غرمې قيلولې ته وخت ورکړو، نور هيڅ وخت نلري، بلکې ټول وخت يې مصروف دی.

پوښتنه: تراوسه مو له دې معسکر څخه څومره مجاهدين فارغه کړي، او کله چې مجاهدين جهادي جبهوته تللي دي آيا بيا معلومات پرې لري چې هغوی څومره مثمردي او جهادي کارونوته يې څومره ګټه کړې ده؟

ځواب: زموږ ددې معسکر د فعاليت له پيله تراوسه پورې چې دوه نيم کاله کيږي، موږ تقريبا ۳۰۰۰ مجاهدين فارغه کړي دي، له فراغت وروسته زموږ اړوند مجاهدين په ټول هيواد کې جهادي جبهاتوته استول شوي دي، چې الحمدلله موږ د جهادي جبهاتو د ډير مثبت بدلون شاهدان يو، ما مختلفو ولاياتو ته سفرونه وکړل، په هرځای کې زموږ د معسکر څخه فارغو شوو مجاهدينو په خپلو جبهو کې ګڼو نورو مجاهدينو ته روزنه پيل کړي وه، جالبه لاداوه چې هرڅه يې زموږ دمعسکر کاپی کړي وو، حتی لباس او ټول درسي سيستم.اودمجاهدينو سره کړه وړه چی دا ددوی دمعسکر اوخپلو استاذانو سره محبت ښيی چی هرڅه يي کټ مټ همدازموږ دمعسکر په شکل کی و.

همدا راز زما په ياد دي، په ډيرو ځايونو کې به دښمن په مجاهدينو ټانکونه ډير په زړورتوب سره را وځغول، چې مجاهدين به يې په آساني شهيدان کړل، خو کله چې د معسکر مجاهدين جهادي ليکوته ورسيدل نو الحمدلله هغه وضعيت کاملا تغير وکړ، دښمن سخت درانه تلفات وليدل، په ډير کم مصرف سره

مجاهدینو د دښمن لویو قواووته ماتې ورکړه او سیمې یې ترې ونیوې.

تاسو به کله ناکله اورئ چې دښمن د عملیاتو په جریان کې کله په دروغو ادعاکوي چې له موږ سره پنجابیان جنګیږي، کله د نورو ملګونو خلک یادوي، کله خو د پردو هیوادونو جنرالان او افسران یادوي چې له دوی سره په جګړه اخته دي، زما په فکر ددغسې ادعاو یوعلت هم ددغو روزل شوو مجاهدینو جهادي لیکوته رسیدل دي، ځکه کله چې مجاهدین د دښمن په مقابل کې ښه نظامي تکتیکونه اجرا کړي، دښمن په آسانۍ له منځه یوسي، هدفونه په ښه ډول په نښه کړي، نو دښمن فکر کوي چې داکار خو طالب نشي کولای، نو دپردو هیواونو نومونه اخلي او د مجاهدینو د بدنامۍ هڅه کوي، په داسې حال کې چې هغه ټول زموږ له دغو معسکراتو څخه فارغ او ښه روزل شوي مجاهدین وي.

موږ د جهادي جبهو یو مثال لرو یو مجاهد خپل مشر ته وایي چې ماته د راکټ یا هشتادو دو مرمۍ راکړه که مې په اول ګوزار سره ټانک نه پرې وویشته دهغې مرمۍ قیمت بیرته درکوم، یعنې په خپله نښه ویشتلو باندې سل په سلو کې باوري وي.

همدا ډول نن سبا د اسلامي امارت په نظامي قطعاتو کې چې کوم مجاهدین ډیر رول اداکوي هغه د معسکراتو څخه فارغ شوي مجاهدین دي چې د جګړې بنه یې جبهې کړه او ټول جهادي صف ته یې قوت ورکړ.

پوښتنه: دلته معسکر ته دکومه سویه مجاهدین راځي او یا راتلونکي کسان په جهادي صفحاتو کې څه څه دندي لري؟

ځواب: په اوایلو کې هڅه کیده چې جهادي مسئول موږ ته داسې کسان رامعرفي کړي چې هغه افراد مجاهدین وه ، خو وروسته موږ بیا بیا له جهادي او نظامي مسئولینو څخه غوښتنه وکړه چې باید موږ ته داسې کسان رامعرفي کړي چې هغه مشران وي، مسئولین وي، علماء کرام وي او داسې ځوک وي چې دلته له زدکړو وروسته چې بیرته جهادي صف ته ګرځي هلته دیو مسئولیت له مخې ډیرڅه وشي کړای، نور ملګري تربیه کړای شي او د جهادي دلګیو(ګروپونو) دقوت او منظموالي سبب وګرځي، اوس الحمدلله همداسې شوي دي، اوس موږ په هره دوره کې له لسو څخه تر۲۵ پوري کسان علماء کرام لرو، حتی له میدان وردګو څخه په تیره دوره کې داسې یو عالم راغی چې وړه( کوچني ــ موقوف علیه) دوره یې تدریس کوله، ډیره یې سپینه وه،خو بیا هم دلته په خاورو کې له نور مجاهدینو سره رغښت او تعلیم یې زده کاوه، چې له دې کار

سره اوس تــول جهــادي مســئولین د خپلــو مجاهدینو د روزنې پـه اهمیـت پـوه شوي او ورځ تـر بلـې زمـوږ معسـکراتو چـې زمـوږ د مرکزي معسکر څـانګي دی چـې پـه بیلابیلـو ولایتونو کې فعالیت لري، هغو قوت پیداکړ، مـنظم شـول او د لاډیـرو مجاهـدینو د روزنــې امکانات یې برابر کړل.

پوښتنه: اوس خو چې موږ ګـورو ستاسـو دا معسکر داسې مرکزي معسکر معلومیږي، آیا تاسو داسې کوم فرعي یـانور معسـکرات لـرئ چې په هر ولایـت کـې وي او مجاهـدین پـه آسانۍ سره نظامي روزنې ته لاس رسی ولري.

ځواب: هو الحمدلله موږ دا نظر لرو چـې په هر ولایت کـې یـو یـو معسـکر ولـرو، مـوږ دهمدې هدف لپـاره ګنـو ولایاتوتـه سـفرونه وکـړل، بـررسي مـو وکـړه، اوس هـم پـه ګنـو ولایاتو کې موږ فرعي معسـکرات لـرو او ګـڼ مجاهـدین تـر زدکـړو لانـدې دي،لکـه عمـده مرکزونه چې دهیـواد پـه مختلفـو برخـو کـې موقعیت لری څلور عمده معسـکرات دی اول دحضرت سعدابن ابی وقاص (رض) مرکـز دی دوهم دحضرت ابوعبیـده ابـن الجـراح (رض) مرکز دی دریم دحضرت زبیر ابن العوام (رض) مرکــز دی څلـورم دحضرـت ابودجانــه (رض) مرکز دی ، خو معسکرات جوړول، ډیر تکلیف هـم لـري، دنظـم سـاتل، د امنیتـي پلـوه یـې خوندیتوب، د راز ساتلو طرز او طریقه همـدا ډول د مصارفو په لحاظ لازم تدابیر چې دا څه ناڅه وخت نیسي،

پوښــتنه: څـومره چــې تجربــه شـوې، د معسکراتو څخه د فـارغو شـوو مجاهـدینو پـه رسیدو سره د مجاهدینو صفوفوته د مجاهدینو تلفات ډیر کم شوي، آیا تاسو داسې څه حـس کړي دي؟

ځواب: هو! طبعي خبره ده چې د ترننـګ په زده کړه سره مجاهدین د دښـمن سره د ښـې مقابلې توان پیدا کـوي او لـه ډیـرو خطرونـو ځان ساتي چـې زمـوږ تلفـات ډیـر ورسره کـم شوي دي، همدا راز د دښمن تلفات ځکـه ډیـر زیات شوي چې د مجاهدینو اکـثره ګوزارونـه په دښمن لګیږي او یا خپل هدف په ښـه ډول له منځه وړي، ځکه مجاهدین مسلکیان شـول او د دښــمن پــه مقابـل کــې یـې ښــه وړتیـا پیــداکړه، اوپخپلــو اسـلحو بانــدی اعــتماد پیداکړخو د دغـو دواړو خـبرو ترڅنـګ یوبـل ډیر مهم کـار چــې د اسـلامي امـارت جهـادي صفوفوته وشو هغه داوو چې زموږ مصارف هم ډیر کم شول، ځکـه یـو مسـئول مجاهـد ماتـه وویل چې الله تعـالی دې تاسـو اجـر درکـړي د معسکر په افتتـاح سره مـو لـه مـوږ سره غـټ احسـان وکړ، اوس الحمـدلله زمـا ټـول ملګـري مجاهدین په څو دوروو کې لـه معسکر څخـه

فارغ شوي دي چې په دې کار سره زما مصارف خورا زيات کم شوي دي، ځکه پخوابه د مهماتو خصوصا د مختلفو اسلحو د مرميو په رانيولو او پيرلو کې له ماخخه پخوا ډيرمصرف کيده ، اوس په ډيره لويه جگړه کې هم زموږ ډيرې کمې مرمۍ مصرفيږي، ځکه مجاهدين دخپلې وړتيا له امله بې ځايه ډزې او گوزارونه نه کوي، او دمسلکي زدکړې په برکت دښمن ښه دقيق او په نښه ولي چې په دې کارسره هم زموږ پرمختگ ډير چټک وي، هم ددښمن تلفات ډير وي او هم مو مصارف ډير راکم شوي دي، لنډه موده مخکې زه پخپله په يوه جنگ کې ښکيل شوم ددښمن لخوا راته کمين نيول شوى وو چې مسلکي ملگري راسره وو، زه فکر کوم چې که دا جنگ عادي مجاهدينو کړي واى نو به يې خامخا درۍ يا ځلور شريده مرمۍ مصرفولي، خو موږ په ټوله جگړه کې ايله ۴۲ مرمۍ وويشتې، دښمن مو وځاپه اوجگړه مو پاى ته ورسوله.

اوس اوس مو مجاهدينو ته د نورو نظامي زدکړو ترڅنگ په طبي برخه کې هم زده کړه پيل کړي ده ،چې که خداى ج مکړه زخمي ورته کيږي، نو دوى بايد ځرنگه اوليه کومک ورسولى شي، له کومو دواوو او علاج څخه استفاده وکړي، ځرنگه خپل ملگري چې ټپي وى، انتقال کړي، چې په دې کار هم د جهاد دبهير تلفات راکښته کولاى شو او نوربه هم تر ډيره مؤثر تمام شي. ان شاءالله

نوربيا.....



# په افغانستان کې د امریکایي بالونونو پټ رازونه

ژباړه: ساحل منګل

خلک د دې بالونونو په اړه بېلابېل نظرونه لري، ځینې وایي په دې بالونونو کې کمرې نصب شوې، چې د جاسوسۍ په چارو کې ترې ګټه اخیستل کیږي او ځینې وایي ، چې د الوتکو دفاعي سیستم(Radar) پکې نصب شوي دي.

مګر په واقیعت کې د دې بالون دنده څه شی ده؟

د دې نظامي بالون نوم (JLENS) دی، چې د ایروستېټ(Aerostat) په نامه هم پېژندل کیږي، دغه بالونونه دهیلیم دګازو څخه ډک دي، چې له ځمکې څخه ۳۰۴ فټه لوړوالی لري، هر بالون د رادارو قوي سیستم، ځمکني کومکي وسایل او د معلوماتو منظم سیستم لري.

د دې بالون سیستم د الوتکو د تهدید د دفاع، توغندیو، بې پیلوټه الوتکو، ځمکنیو اهدافو او د لویو راکټونو لپاره جوړ شوی دی. د یو بالون د نظارت او څارنې ساحه د امریکا د یو ایالت په اندازه دی او حیرانونکې، ډېره جالبه او د نه منلو وړ خبره دا ده ، چې د دې بالون قیمت درې ملیارده ډالرو ته رسیږي، هو درې ملیارده ډالره.مخکې له دې ،چې ځینو پوښتنو ته ځواب ورکړو غواړو، چې د خلکو د نظریو په اړه یوه څو خبرې وکړو.د مثال په ډول د دې بالون څخه د الوتکو او رادار کار اخیستل کیږي نو ولې په نورو هیوادونو کې، چې پرمختللي او لوی هوایي ډګرونه لري له دې بالون څخه ګټه نه اخیستل کیږي؟

دا، چې په دې بالون کې کمرې لګول شوې که نه؟ځواب یې هو دی، مګر له دغو کمرو څخه د بریدګرو په پېژندګلوي کې ګټه نه اخیستل کیږي، په تېرو څو کلونو کې امریکایانو یو ځل هم د دې بالون پر مټ د حملو مخنیوی نه دی کړی، حتی په هغه ورځ، چې په کابل کې د امریکا په سفارت او (CIA) باندې حملې وشوې.

**لومړی راځو د افغانستان په ښارونو او کلیو کې د دې سیستم د لیدو نظارت ته!**

۱ د دې دستګاه موجودیت، چې د خلکو کورونو، شخصي- ملکیتونو او د خلکو شخصي- ژوند د لیدلو قابلیت لري د اساسي قانون له نظره غیر قانوني کار دی؛ ځکه، چې د هر اتباع د خوندینې له حق څخه په اساسي قانون کې یادونه شوې، د خلکو شخصي- ژوند څخه نظارت او لیدنه د خلکو په حریم باندې ښکاره تېری دی.

**۲اسلام دخلکو حریم دانسان عمده حقونوڅخه ګڼي.**

د صحیح مسلم په ۱۴۲۱ حدیث کې راغلي د چا کور ته د ننوتلو وړاندې باید درې ځله اجازه واخیستل شي او د نه اجازې په وخت کې دغه سړی کور ته د ننوتلو حق نه لري.

د دې بالونو په واسطه د افغانانو د کورونو لیدل په زوره او بې اجازې ننوتل معنی لري، همدارنګه جاسوسي په اسلام کې هم منع شوې (اې مومنانو له ډېرو ګمانونو څخه ډډه وکړئ؛ ځکه، چې ځینې ګمانونه ګناوې دي او د نورو په کارونو کې جاسوسي مه کوئ او ځینې د تاسو څخه د ځینو غیبت مه کوئ ایا په تاسو کې څوک دا خوښوي، چې د خپل مړ شوي ورور غوښه وخوري، چې له هغې څخه مو کرکه کیږي او له الله ج څخه په توبه کونکو مهربانه دی.)سورت الحجر ایات ۱۲

۳ نظر هغو قوانینو ته، چې د دې غربیانو په لاس جوړ شوي دي هم دغه کار غیر قانوني دی، د محرمیت حق د بشر حقونو د یوې برخې څخه دی، چې د حقوق بشر نړیوالې اعلامیې په دولسمه ماده کې راغلي دي، د محرمیت حقوق په طبیعي حقوقو کې شامل دي، چې د بشر حقونو په نامه یادیږي.

هغه حقوق او ازادي، چې د بشرـ حقونو په نامه یادیږي زیات شمېر یې په طبیعي حقوقو کې شامل دي، مګر د هغوی څخه یې د هغو حقوقو او ازادیو څخه طبیعي حقوق نه دي، چې د محرمیت حق هم د هغې له ډلې څخه شمېرل کیږي. د محرمیت حق د یو اخلاقي ارزښت او یا د بشرـ حقونو د یوه اصل په توګه د پرمختللیو هیوادونو له خوا منځ ته راغلی.

ولې مهم ټکی، چې یادونه مو وکړه په بل ځای کې دی، له دغې دستګاه څخه دلرې واټن ویشتونکي توغندیو (Cruise Missile)ابېنودنې لپاره کار اخیستل کیږي.

دغه دستګاه د څلرویشت ساعتونو لپاره په ۳۴۰ میله په واټن کې د دښمن د توغندیو، الوتکو، ټانګونو او هلیکوپټرو دنظارت قابلیت لري. دغه دستګاه راټول شوي اطلاعات نظامي مرکز ته ورکوي، چې نظامي متخصصین د توغندي ضد سیستم (Anti-Missile System)، چې په امریکا کې ورته(Patriot) وایي وکولای شي مخکې دتوغندیو له رسېدوهغه خنثی کړي.

په افغانستان کې د دې دستګاه د نصبولو څخه هدف څه شی دی؟

ښایي تاسو دا فکر وکړئ، چې دغه سیستم به زموږ د امنیت لپاره لګول شوی وي، خو نه، په حقیقت کې دا، چې دغه سیستم د امنیت لپاره نه دی لګول شوی بلکې کولای شي د افغانستا د بر بادۍ لامل هم شي.

په دې سیستم باندې د لوېې سرمایې لګولو هدف د امریکا د لویو دښمنانو (روسیې او چین ) او یو شمیر نورو هیوادونو دتوغندیو خنثی کول دي، نو که چېرې سبا ورځ دروسیې، چین او امریکا تر منځ احتمالي جګړه رامنځ ته شي او روسیه یا چین افغانستان د توغندیو هدف وګرځوي ډېره به د تعجب خبره نه وي.

د دا ډول هستوي حملو په صورت کې که امریکا وتوانیږي د روسېې ټول توغندي خنثی هم کړي، بیا هم د افغانستان نیم خلک به د یورانیمو د وړانګو له امله خپل ژوند له لاسه ورکړي.

بله پوښتنه که امریکا د توغندي ضد سیستم، چې غواړي د چین او روسیي هستوي توغندي خنثی کړي چیرته کولای شي پټ کړي ؟ځواب یې ساده دی؛ امریکا کولای شي دغه سیستم د افغانستان په لوړو غرونو کې پټ کړي.

نو اوس کولای شو ووایو، چې دغه بالونونه نه یوازې په کابل بلکې په نورو ولایتونو کې هم لیدل کیږي، د پورته مطلب په لوستلو په دې پوهیږو، چې افغانستان د یو دفاعي دېوال او نظارتي برج حیثیت لري.

# جنګي جنايتونه

## (ډسمبر)

سيد سعيد

د تير( ۲۰۱۵ز) کال د ډسمبر دمياشتې په لومړۍ نيټه مابنام مهال د ننګرهار ولايت د غني خيلو ولسوالۍ په سياه چوب سيمه کې داخلي عسکرو د ملکي خلکو په کورونو چاپه وهلې، د خلکو کورونه يې تلاشي کړي، خلک يې وهلي،څلور نفره ملکي هيوادوال يې بنديان کړي او د خلګو ځيني شيان يې هم له ځان سره وړي دي.

د ډسمبر په ۳مه دزابل ولايت د شينکۍ ولسوالۍ په ډب سيمه کې د داخلي عسکرو دهاوان په يوه مرمۍ چې دسيلاني اکا په کور لګيدلې دنومړي ميرمن شهيده شوې ده.

د ډسمبر په ٤مه د ميدان وردګ ولايت د سيداباد ولسوالۍ په اوتړيو کلي کې دکورنيو عسکرو په يو توغنديز بريد کې لس تنه ولسي هيوادوال شهيدان او اته تنه ټپيان شوي دي، په شهيدانو او زخميانو کې ماشومان هم شامل دي.د عيني شاهدانو په وينا پيښه په داسي حال کې رامنځته شوې چې خلګ د مسجد مخته راټول شوي وو، اور ته يې ځانونه ګرمول چې د اردو د عسکرو له قرار ګاه څخه هاوان راغلی د خلګو په منځ کې ولګيد او له امله يې پورته ذکر شوې مرګ ژوبله ولسي خلګو ته واوښته. خلګو د همدې پيښې په غبرګون کې د کابل - کندهار لويه لار تر څو ساعتونو پورې د ترافيکو پر مخ تړلې وه،د حکومت پرضد يې شعارونه ورکول او د خپلو خلګو دوژنکو د محاکمې غوښتنه يې کوله. دميدان وردګ ولايتي چارواکو هم دغه پيښه تائيد کړې ده.

د ډسمبر په ٥مه د کندزولايت د چهاردرې ولسوالۍ په مربوطاتو کې اربکيانو يو ملکي وګړی شهيد کړی او يو بل تن ټپي کړی دی.

د ډسمبر په ۱۲مه دهلمند ولايت د ناوې ولسوالۍ د هدرې په سيمه کې په يو کور کې د داخلي عسکرو دهاوان د يو ې مرمۍ د لګيدو له امله يوځوان، يوه ميرمن اودوه تنه ماشومان شهيدان شوي دي.

د ډسمبر په ١٤مه د کندز ولايت د دښت ارچي ولسوالۍ د کلباد په سيمه کې اشغالګرو او داخلي عسکرو دولسي خلګو په کورونود

چاپې په مهال یو ملکي وګړی ( دلدار) شهید کړی دی.

د ډسمبر په ۱٤مه د غزني ولا یت ددیک ولسوالۍ په شیراکلا کي اشغالګرو د داخلي عسکرو په ملتیا دشپې مهال دخلګو په کورنو چاپه وهلې، د ځایي اوسیدونکو په وینا یرغلګرو او کورنیو عسکرویې کورونه په خورا وحشیانه ډول تلاشي کړي، وروسته یې په سیمه کي پر یو جومات بمبار کړی،د مسجد امام (مولوي نصر الله)، یو تن کلیوال (محمد عمر جان) او څلور تنه د مدرسې زده کونکي یې شهیدان کړي دي.

د ډسمبر په ۱۵مه سهار چي خلګو د یادوو شوو شهیدانو جنازې د همدې ولسوالۍ د تاسن کلي هدیرې ته دتدفین لپاره انتقال کړي، داخلي عسکرو د جنازو پرمراسمو برید کړی، د حاجي محمد شاه خان په نوم یو ګډونوال یې شهید کړی او حاجي محمد شریف او محمد نبي یې ژوبل کړي دي.

د دسمبر په ۱٦مه یرغلګرو ځواکونو دشپنیو علیماتو په لړ کي دهلمند ولایت د خانشین ولسوالۍ په قلعه نو سیمه کي د یوې چاپې په مهال څلور تنه ولسي هیوادوال شهیدان کړي دي.

د ډسمبر په ۱٦مه د ننګرهار ولایت دبټي کوټ ولسوالۍ په چهاردهي سیمه کي یرغلګرو پوځیانو د ملکي خلګو پرکورنو د چاپې پرمهال خلګ وهلي،ځورولي،یو تن ولسي وګړی یې شهید کړی او دوه کسان یې ټپیان کړي چي همدغه ژوبل کړي کسان یې د ځان سره د بندیانو په توګه هم وړي دي.

د ډسمبر په ۲۲مه د جوزجان ولایت د فیض اباد ولسوالۍ په کوکلداش کلي کي اربکیانو یوه پنځوس کلنه میرمن او زوی یې شهیدان کړي دي.

د ډسمبر په ۲۲مه دننګرهارولایت دغني خیلو ولسوالۍ د ډاګي په سیمه کي کورنیو عسکرو دعلمیاتو په مهال د خلګو کورونه تلاشي کړي، خلګ یې وهلي ا واخر کي یې دوه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

د ډسمبر په ۲۸ مه دهلمند ولایت د سنګین ولسوالۍ بازار ته څیرمه په چیناري سیمه کي یرغلګرو د داخلي عسکرو په ملتیا چاپه وهلې، یوتن کلیوال یې زخمي کړی اویو عام وګړی او په سیمه کي دیو روغتون دوه تنه ډاکتران یې د بندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.

مأخذونه :[بي بي سي راډیو،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک = ،خبریال ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# ۲۰۱۵ ز کال

## د ډيسمبر مياشت جهادي خبرونه



# شهیدارغوان

رضوان الله (فیضاني)

د خوږمن زړګي درمان مې شهید شو ی
راته ګران له خپله ځ ان مې شهید شو ی

دا چې ځم پ ر هره لار سلګۍ وهمه
یو سپېڅلی پاك ارمان مې شهید شو ی

روڼ تصویر یې زما په سترګو کې غړېږ ي
شوم یعقوب نورِ چشمان مې شهید شو ی

ټول میوند په وینو سور زخمي زخمي دی
ملالۍ هم ایوب خان مې شهید شو ی

ځنګول یې په خو اږه ترنم غرونه
ها بلبل د کابل جان مې شهید شو ی

پ ر ګلشن بیا د خزان سیلۍ راغل ي
پاڼې پاڼې دی ریحان مې شهید شو ی

زه مالي چې ځ ولې تشه ګرځومه
هم غاټول هم ارغوان مې شهید شو ی

(فیضاني) به چې مدام پرې نازېدمه
هغه ړنګ اوبنګ جانان مې شهید شو ی

# دعزم په عملیاتوکي

## دګوډاګی اداري ۲۷۳ قوماندانان او مسؤلین وژل شوي

امریکایي لاس پوځې فاسده اداره چې دهیواد د/ ۹۹/ فیصده او قاطع
اکثریت پر حقونویې خیټه اچولې او داسلام په دې هیواد کې عیسویت
،بې دینی، دیموکراسی، ته رواج ورکوي اسلامي شعائر له منځه وړي او پر
ځای یې امریکا خوښی حالت را منځ ته کوي دخلکو مال او عزت لوټې نو
ددوی په وړاندي داولس برحقه مبارزه چې داسلامي امارت په چوکاټ کي
پر مخ روانه ده ددې لپاره چې په هیواد کي یو سوچه اسلامي نظام حاکم
شي دګډ دښمن پر مراکزو او ددوی پر مزدورو عسکرو په دوامداره توګه
بریدونه ادامه لري چې په دې لړ کي ورڅخه ولایات ولسوالی، او په سلګونو
پوستې ونیول شوې او لا هم هم دا لړی دوام لري دا چې ددښمن په
تلفاتو خبرشی، چې څومره ځاني تلفات به ور اوښتي وي نو دلته یې یوازي
دهغو لوړ پوړو اجیرانو نوملړ درته وړاندي کوم چې دعزم مبارکو عملیاتو له
پیل نه تر دا مهاله چې دافغانستان په ځینو ولایاتو کي دمجاهدینو په
بریدونو کي دګوډاګی، اداري څومره قومندانان او منسوبین وژل شوي
تاسو ته یې داجمال په توګه یې نومونه درته وړاندي کوو

## ارزګان ۳۲ نفره

امنیه قوماندان ګلاب دبانګ رئیس جبارخان. قوماندان دل اغا ، پخوانی
ولسوال عبدالحلیم ، ددهراود پخوانی ولسوال او خلقي داروخان خاکسار ،
قوماندان فضل ربي، قوماندان سلام خان ،دچار چینو ولسوال اسماعیل
خان ، قوماندان متین کندوزی، قوماندان جلات خان ، قوماندان
منان، دبندیانو دلیږد مسئول محمد زی خان قوماندان نعمت ، داربکیو
عمومي قوماندان داروخان ،قوماندان ګل محمد (وطن) قوماندان رحیم
الله ، قوماندان جان اغا ، قوماندان دادګل ، قوماندان صمدجان ، قوماندان
حاجي طالب ، قوماندان سیدګل مامور ، قوماندان ګل ماد ، قوماندان قاري
نورمحمد ، قوماندان ضابط ، قوماندان (کا) ، دچورې دقوماندانی
مرستیال قوماندان امیر محمد ، قوماندان صالح ، قوماندان محمد دین ،
قوماندان قدرت ، قوماندان سردار ، قوماندان غلام نبي ، قوماندان جمعه ګل

## بادغیس ۹ نفره

قوماندان هاشم ، قوماندان حاجي اختر ،قوماندان شیر علي ،قوماندان
اقبال ، قوماندان فریدون، دغورماچ امنیه قوماندان مجیدخان ، دجوند
قوماندان امنیه فیض الله خان ، محمد حس ناصح ، قوماندان قیوم ،

## دایکندي ۵ نفره

قوماندان پهلوان ،قوماندان میر امودي (شمشیر)، قوماندان ولی الله
شاهین ، قوماندان ابراهیم ، مامور کامران ،

## زابل ۲۰ نفره

دقوماندان رازق معاون اسد، دافراسیون مسئول لغمانی ،دقطعې مرستیال
بامیانی ، قوماندان نجیب، قوماندان اسد،قوماندان فولاد ،قوماندان نعیم
،قوماندان موشه ګل ، قوماندان ملا سلام ، قوماندان اوریا ، قوماندان
حمیدالله ، قوماندان ګل محمد ، قوماندان عزت الله ، قوماندان کرکین ،
قوماندان فیضول ، قوماندان قاهر ، قوماندان برات محمد شنکی، وال ،
ضابط ګاډی ، کنډک مشر قربان علي ، قوماندان ضابط سلیم

## سرپل ۱۳ نفره

قوماندان حسن، قوماندان ستار ،دامنیت آمر نجیب مزاری ، قوماندان
کمال عیسوی ،قوماندان بحرالله ،قوماندان طوفان او ورسره څلور نور
قوماندانان قوماندان ، سِکندر ، قوماندان نظام ، قوماندان امیرالدین

## غور ۷ نفره

د۲۰۷ ظفرقل اوردوقوماندان شعیب بخشي ، دڅلورمې ټولی، قوماندان،
قوماندان زین خان ، قوماندان جنرال کریمخان، قوماندان عبدالقیوم ،

قوماندان عبدالجبار ، قوماندان سراج ،

## فاریاب ۲۷ نفره

قوماندان عبدالرسول ،قوماندان نظر ، قوماندان سراج، قوماندان ضیاء الدین،آمر ذوالفقار ، قوماندان ستار رئیس،څارنوال حبیب الله ،قوماندان نسیم ،قوماندان نادر ګلم جمی ،قوماندان حاجي الله نظر ، قوماندان ساعت خان ، قوماندان محمد خان ، قوماندان مولوي توکل ، قوماندان مرد ، قوماندان قدرت ، قوماندان نسیم ، قوماندان غفور ، قوماندان اسرائیل ، قوماندان خدای رحیم ، قوماندان یار محمد ، قوماندان عبیدالله ، قوماندان نصرالله ، قوماندان جاوید ، قوماندان ګیلدي ، قوماندان نعیم ، قوماندان فیض جنبشی

## فـراه ۱۲ نفره

قوماندان سلطان ، قوماندان موسی، قوماندان عبدالرؤف خان، قوماندان غفار ، قوماندان مهربان ، قوماندان محمود ،څارنوال نعیم ،قوماندان جمع ګل خان ،صاحب منصب ظاهر ، قوماندان نثار ، قوماندان بریدمن جلیل ، قوماندان صمدآغا ،

## قنـدهار ۵۲ نفره

قوماندان اغاولي ، قوماندان مهمان، قوماندان نورعلي ، قوماندان ریمبو، قوماندان عبدالرحمن ، قوماندان شمس الله، معاون جبار ، قوماندان شیرکی، قوماندان عمر، قوماندان میرویس ، دغورک دامنیت معاون ذبیح الله ،دژړۍ ولسوالي څارنوال ،قوماندان جمیل ،قوماندان محب الله (ښامار) قوماندان اکبر ،قوماندان شاولي ،قوماندان ګل نبي ،قوماندان تورجان ،قوماندان ګلباران ، قوماندان ابدال ، ددوهمې ناحیې دپوستې قوماندان نعمت ، قوماندان محمدرفیق ، ددیارلسمې حوزي آمر قوماندن عبدالهادي ،قوماندان جلال عثمانزی ،قوماندان ملا ، قوماندان پهلوان ،قوماندان محمود ، قوماندان متکی ، قوماندان مولدین ، قوماندان نسیم ارغستانی ، قوماندان ښایسته خان پښتون ، قوماندان ظاهر سیاچویي ، قوماندان نجیب ، قوماندان ګرانی ، ټولی مشر قوماندان باریداد ، قوماندان روزي ، ضابط محمد عیسی ، قوماندان شامحمد ، قوماندان سوداګر ، قوماندان نیک ، قوماندان جان محمد خان ، قوماندان سیف الدین ، دخاکریز قوماندان جنایي ، دڅلورمې حوزي معاون نصرالله ، قوماندان انار ، قوماندان سخي ، ضابط سعدالله خان ، قوماندان محمد ، دخاکریز امنیه قوماندان شریف الله ، قوماندان سعدالله ، عبدالنافع ،

## نیمـروز ۷ نفره

قوماندان بصیر ، دچخانسور ولسوالي مرستیال حاجي حکیم ، دڅلورمې حوزي قوماندان عبدالرحمن ، قوماندان عبیدالله ، قوماندان قدوس ، سید نذیر سادات ،

## هــرات ۱۳ نفره

قوماندان حمید خیرخواه ، قوماندان عبدالجبار، قوماندان اکبر، ضابط اکرم ،قوماندان سراج،قوماندان فضل احمد ، دپښتون زرغون دامنیت مدیر، قوماندان عبدالقادر غورماچي ، رئیس نور احمد خان ، قوماندان میرجانک ، قوماندان شاهدالله کهسانی ، داسلام قلعه دشاهراه عمومي قوماندان عبدالرحیم ،

## هلمـند ۷۶ نفره

قوماندان زین الدین او قوماندان ننګیال . قوماندان جانګی قوماندان عابد قوماندان شمشاد، قوماندان عبدالرازق ، قوماندان داود، قوماندان الماس، قوماندان تاثیري ،قوماندان مجاهد ، قوماندان ګلاب ایوبي ، حاجي عبیدالله ،حاجي عبدالرحیم،عبدالکریم ، قوماندان محمد نبي ، قوماندان احسان ، قوماندان میرویس ، قوماندان جانان، قوماندان ستار ، قوماندان روستم ، قوماندان داود، قوماندان عاشق ،قوماندان جهادي ،قوماندان فیض الله معراج، تور شکور ،قوماندان صابر ،قوماندان کولالا ،قوماندان تورجان ،قوماندان عبدالباري ،قوماندان جانان ،قوماندان متین . قوماندان محمدولي ،قوماندان تور ظاهر ،قوماندان عصمت ، قوماندان شریف ،قوماندان لړم ،قوماندان رفیع الله مشهور په کولالا ،قوماندان آدم اغا ، قوماندان ملاسنګین ، قوماندان سردار ، قوماندان ضابط عبدالحق ، قوماندان حبیب الله ، قوماندان سیدنبي ، قوماندان نورګل ، قوماندان محمدولي ، قوماندان سلیم ، قوماندان صدیق قوماندان وطندوست ، قوماندان تورجان ، قوماندان هنر ، قوماندان دریاب ، قوماندان عبدالغني ، قوماندان کامران ، معاون زلمی ، دموسا کلا امنیه قوماندان ، قوماندان فرید ، قوماندان ملک ، قوماندان حسن ، آمرکشف شراف الدین ، قوماندان مولوي ، قوماندان سور اغاولک ، قوماندان تعرضي ، قوماندان جانان ، قوماندان خوږَیي، قوماندان عبدالمالک ، قوماندان آصف ، قوماندان سلطان محمد ، قوماندان احمد ، قوماندان ګلالی ، قوماندان بسم الله ریګی ، قوماندان ښائسته خان ، قوماندان زهیر ، قوماندان شاولي ، معاون دلاور ، قوماندان محمد ، قوماندان ، قوماندان خاکسار ۰

قاري محمدیوسف احمدي داسلامي امارت ویاند

۱۴۳۷/۲/۲۰ هق/2015/12/3م




**میوند کې دګوډاګیانو په شوبله چاودنه شوي**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د میرزاکاریز په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په شوبله چاودنه وشوه چې له امله یې شوبله ویجاړه او یکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته 2015/12/2

**میوند کې شوبله ویجاړه ګوډاګیانو ته یکې مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د ګرماوک په سیمه کې دمزدورو عسکرو په شوبله چاودنه وشوه، دچاودنې له امله شوبله ویجاړه او یکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته 2015/12/2

**میوند کې ماین ۲ګوډاګي عسکرقتل کړل**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د کلانکیچي غونډۍ په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو چاودنه وشوه او له امله یې ۲ تنه ګوډاګي عسکرقتل شول 2015/12/3

**میوند۳ شوبلې یوا کمالاتي موټرویجاړ دښمن ته مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ اړوند د ګرماوک په سیمه کې دهغو ګوډاګیو عسکرو ۳ شوبلې اویو اکمالاتي موټر دوسلوالو بریدونو او چاودنو له امله ویجاړ شول چې له غورک ولسوالۍ څخه دتېښتې په حال کې و، په چاودنو او بریدونو کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله هم ورکړل شوه 2015/12/3

**ښوراېک کې غبرګو چاودنو ګوډاګیو عسکر ووژل**

دکندهارولایت د ښوراېک ولسوالۍ اړوند د سروچاهانو په سیمه کې دنورالدین او چوک پوستو ترمابین په ګوډاګیو عسکرو غبرګې چاودنې وشوې، چاودنو ۵ تنه ګوډاګي عسکر ووژل 2015/12/4

**میوند کې یوګوډاګی عسکرقتل شو**

دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ دملالۍ انا زیارت په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پلې ګزمه برید ترسره شو چې له امله یې یوګوډاګی عسکرقتل او پاتې نور په تېښته بریالي شول 2015/12/4

**ښوراېک کې پوسته فتح وینجلا موټرسایکل اوګڼ مهمات غنیمت شول**

دکندهارولایت د ښوراېک ولسوالۍ اړوند دسروچاهانو په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو قرارګاه د توغندیو تر برید لاندي راغله او وروسته په قرارګاه او ۲ نورو پوستو بریدونه ترسره شول، دبریدونو په مهال یوه پوسته فتحه او یکې میشتو ګوډاګیانو ته مرګ ژوبله واوښته په پوسته کې یو رینجر موټر، ۲ موټرسایکلان، یو کلاشنکوف له زرو مرمیو سره، ۱۰۰۰ دثقیل مرمۍ، یوه د اوبو ټانکۍ او نور مهمات غنیمت شول، په دوهمه پوسته او قرارګاه کې هم دښمن ته تلفات واوښتل 2015/12/5

**غورک کې پوسته فتحه ۱۴ګوډاګیان قتل ۲ اسیران ګڼ شمېر مهمات غنیمت شول**

دکندهارولایت د غورک ولسوالۍ د ده سبزي په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په مهمه پوسته برید ترسره شو، د برید په ترځ کې فتحه، ۱۴ تنه ګوډاګي عسکرقتل، ۲ تنه یې اسیران او نور په تېښته بریالي شول، په پوسته کې له دښمن څخه ۲ عرادي موټرسایکل، ۳ ثقیلان، یو راکټ، ۲ اویا ډزي، ۹ کلاشنکوفونه، ۱۲ پیره دراکټ مرمۍ، ۵۰۰۰ د ثقیل او کلاشنکوف مرمۍ او ګڼ شمېر نور مهمات غنیمت شول 2015/12/7

**دکندهارپه فدایي بریدکې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار د ۹ حوزې اړوند د بریښناکوټ ته ماموریت ۲ تنه قهرمان فدایي مجاهدین (جاوید او الهام) په داسي حال کې ننوتل چې لومړی یې ماموریت ته څېرمه د پله په سر ولاړو پیره دارانو او پولیسو برید ترسره کړ او د پیره دارانو په شمول یې ۸ تنه پولیس قتل کړل، وروسته یې په ماموریت کې په میشتو ګوډاګیانو بریدونه وکړل چې ګڼ یې مړه او ژوبل شول او یو شمېر په تېښته بریالي شول، مجاهدینو سیمې ته له راغلیو کومکي عسکرو سره هم جګړه وکړه، دوه تنه نور فدایي مجاهدین چې د پولیسو په یونیفورم کې ؤ وایې موړ له پولیسو سره یوځای وچې ویل یې په بریدکې ټولۍ مشر زلمی، دماموریت قومندان شایسته ګل اودشایسته ګل دمعاون په شمول ۱۸ تنه پولیس وژل شوي، یادو مجاهدینو په دښمن دشا لخوا برید وکړ چې په دې بریدکې هم تر ۱۵ تنه زیات دجاسوسي شبکې کارمندان پولیس او عسکر قتل شول له برید وروسته دواړه فدایان روغ رمټ تر خپلو مرکزونو پورې راورسید 2015/12/8

